ورځپاڼه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
پنجشنبه د شعبان المعظم ۷ مه ۱٤٤٦ ق کال، د سلواغې ۱۸ مه ۱٤۰۳ ل کال، د فبروري ٦ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵۳۷ مه، پرله پسې ګڼه ٦۲۷ مه، اتمه دوره

## هند له افغانستان سره بشري مرستې دوه برابره زیاتوي

د هند د مالیې وزارت په خپل وېبسایټ کې د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي، چې دغه هېواد له ۲۰۲۵ څخه تر ۲۰۲٦ زېږدیز کال پورې په خپله بودجه کې له افغانستان او مالدیف سره بشري مرستې زیاتې کړې دي.نوي ډیلي که څه هم د نوي مالي کال په بودجه کې د بهرنیو مرستو کچه د تېر کال په پرتله کمه کړې، خو یو شمېر هېوادونه لکه افغانستان او مالدیف یې نه دي هېر کړي. له افغانستان سره د هند ځانګړې مرستې له ۵۰۰ میلیونو هندي کلدارو څخه ۱۰۰۰ میلیونو هندي کلدارو ته زیاتوالی موندلی دی.له بلې خوا د اقتصاد وزارت د نړۍ د هېوادونو په ځانګړې توګه د هندوستان له بشړپالو مرستو څخه هرکلی کوي او وايي؛ هند یو له هغو هېوادونو شمېرل کېږي، چې کولی شي له افغانستان سره د بنسټیزو پروژو په عملي کولو کې مرسته وکړي.اقتصادي کارپوهان له افغانستان سره په اوسنیو شرایطو کې د هندوستان اړیکې مهمې بولي او وايي: د دواړو هېوادونو هر ډول اړیکې کولی شي د اقتصادي او سیاسي اړیکو...۷مخ

## د کمال خان بند درېیم فاز پروژه ګټې اخیستو ته وسپارل شوه

د دغې پروژې ګټې اخیستنې ته د سپارلو د مراسمو پیل د اوبو او انرژۍ وزارت سرپرست محترم الحاج ملا عبداللطیف منصور، د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت سرپرست مولوي عطاءالله عمري، د نیمروز والي شیخ محمد قاسم خالد، د اوبو او انرژۍ وزارت د اوبو معین مجیب الرحمن عمر آخندزاده، د اسلامي امارت د مشرانو او د ګڼ شمېر ځایي اوسېدونکو په شتون کې د نوموړي بند په ساحه کې ترسره شول.

د اوبو او انرژۍ وزارت سرپرست ګټې اخیستنې ته د دغې پروژې د سپارلو په مراسمو کې څرګنده کړه چې اسلامي امارت په هېواد کې امنیت، اسلامي نظام او اقتصادي پراختیا رامنځته کړې، په دې اساس د افغانستان له خلکو څخه تمه کېږي چې د دښمن د تبلیغاتو پر وړاندې ویښ او بیدار واوسي.

ښاغلي منصور ټینګار وکړ چې...۷مخ

## د لوګر د عامې روغتیا ریاست ته ۹ کانیکس کانټینرونه وسپارل شول

د لوګر د عامې روغتیا ریاست مسئولینو د ملګروملتونو د نفوسو د وجهي صندوق په مالي ملاتړ د ۲ میلیونه ٦۰۰ زره افغانیو په ارزښت دغه ریاست ته په روغتیایي وسایلو د سمبالو ۹ کانیکس کانټینرونو د ورسپارل کېدو خبر ورکړي دي.د لوګر ...۷مخ



## پاکستان له بند څخه آزاد شوي ۸٦ افغانان د تورخم له لارې هیواد ته را لېږدولي



په تورخم کې د کډوالو د لېږد مسئولینو خبر ورکړي، چې پاکستان د دغه هېواد په پلازمېنه اسلام اباد او خیبر پښتونخوا کې نیول شوي ۸٦ افغانان له تورخم لارې افغانستان ته رالېږدولي دي. د مسئولینو په خبره، دغو کسانو چې ډېرو یې پاکستان کې د اوسېدو...۷مخ

## جاپان په بېلابېلو برخو کې له افغانستان سره مرستو ته دوام ورکوي

د اقتصاد وزارت سرپرست قاري دین محمد حنیف، په کابل کې د جاپان له سفیر تاکایوشي کورومایا سره کتلي دي.د اقتصاد وزارت په خپره شوې خبرپاڼه کې راغلي چې په دې کتنه کې، دواړو لوریو د اقتصادي همکارۍ د ښه والي او د بشري مرستو د اغېزمنتوب او دوام په اړه خبرې کړې دي.

د جاپان سفیر، په ۲۰۲٤ میلادي کال کې د دغه هېواد د شاوخوا ۲۷.٤ میلیونو ډالرو بشري مرستو په اړه معلومات ورکړي چې په افغانستان کې د ملګرو ملتو سازمان د اړوندو ادارو له لارې په بېلابېلو برخو کې پلې شوې دي.هغه، په ۲۰۲۵ میلادي کال کې له افغانستان سره د روغتیا، تعلیم، له نشه یي توکو سره د مبارزې، بدیل معیشت، د اوبو مدیریت، د اقلیم له بدلون سره د مبارزې او د بېځایه شویو او راستنېدونکو د ستونزو د حل په برخو کې د خپل هېواد د پراختیایي...۷مخ



## اوچا: در سال روان به یک میلیون خانواده در افغانستان کمک می‌کنیم

بخش افغانستان دفتر هم‌آهنگ کننده کمک‌های انساندوستانه سازمان ملل متحد، اعلام کرده که در سال روان میلادی به یک میلیون خانواده در افغانستان کمک ارائه خواهد شد.این نهاد، دیروز در گزارشی در وبسایت خود، نوشته که این کمک شامل بسته‌های پول نقد است که به خانواده‌های آسیب‌پذیر ارائه خواهد شد.اوچا، افزوده که این کمک خانواده‌ها را توانمند می‌کند تا برای شان غذا، دارو و وسایل زمستانی، تهیه کنند.

## مولوي قدرت الله جمال د میدان وردګو ولایت مجاهد ملي موزیم وکوت

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د ګرځندوی مالي او اداري چارو مرستیال مولوي قدرت الله جمال، د دفتر رئیس مولوي احسان الله احسان، د کارکوونکو چارو رئیس مولوي نقیب الله نعمان او ور سره مل پلاوي میدان وردګو ته د سفر پر مهال له مجاهد ملي موزیم څخه لیدنه وکړه.مولوي قدرت الله جمال مجاهد ملي موزیم د هېواد په سطحه یو نوښت وباله او د یاد ولایت د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست کړنې یې وستایلې.دغه‌راز نوموړي مجاهد ملي موزیم د کلتور، تاریخ او د جهادي ارزښتونو د ساتنې په برخه کې یو مهم ګام وباله او د یاد موزیم د لاغني کولو لپاره یې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت له خوا د هر ډول همکارۍ ژمنه وکړه.د میدان وردګو د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس مولوي حبیب الله مجاهد راغلي پلاوي ...۷مخ



## لغمان کې د ۲٤٤ زره ډالرو په لګښت روغتیایي مرکز جوړ شو

د لغمان په یوې لرې پرته بادپښ ولسوالۍ کې د ۲٤٤ زره امریکایي ډالرو په لګښت بادپښ ولسوالۍ اړوند یوبشپړ روغتیایي مرکز دی، چې مالي ملاتړ یې د یونسیار ادارې له



روغتیایي مرکز جوړ او ګټې‌اخیستنې ته سپارل شوی دی.د یاد ولایت د کډوالو ریاست رئیس غلام‌الرحمن بلال وايي ،چې یاد روغتیایي مرکز د یوه کال په موده کې جوړ شوی، چې اتلس خونې، د احاطې دېوال، د اوبو څا، تشنابونه او د محافظینو خونې لري.نوموړي وویل: (( دا د لورې شوی، چې همکاره اداره یې د مهاجرینو ریاست دی، چې مجموعي مصرف پرې دوه لکه او څلورڅلویښت زره امریکایي ډالره شوی.د لغمان والي شېراحمدحقاني وايي: بادپښ ولسوالۍ ،چې له ډېرو لومړنیو خدمتونو بې‌برخې وه، د دوی په ځانګړې پاملرنه په‌کې یاد مرکز جوړ...۷مخ






د خوست ځایي مسئولین وايي، چې د دې ښار په ډېرۍ او کنډیو سیمو کې د برښنا رسولو د دوو لوړ تناژه ترانسفرمرونو د لګولو چارې بشپړې او ګټې اخیستنې ته سپارل شوې دي.

د خوست ولایت د مقام ویاند مستغفر ګربز باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې د مرکز اړوند د ډېرۍ او کنډیو سیمو ۱٦۱ او ۱۵٦ ترانسفارمرونه په ظرفیت د ۲۵۰x۲ کیلو واټ دویم فیدر پورې وصل او منتاژ شول.نوموړي زیاته کړه، چې د دغو دوو ترانسفارمرونو په وسیله به شاوخوا ۵۰۰ کورنۍ د برښنا له اسانتیاوو څخه برخمنې شي.د یادونې وړ ده، چې د یادو ترانسفارمرونو لګول او کارونه د برښنا ریاست او د سیمې د خلکو په همکارۍ یو کال وړاندې پیل شوي وو، چې په کې یو شمېر کسانو ته د کار زمینه هم برابره شوې وه.

## ننګرهار کې د اوبو رسولو ۲۲ شبکې جوړېږي

د ننګرهار ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا ریاست مسئولین وايي، چې د دغه ولایت په ۱۷ ولسوالیو کې د یونیسف په مالي ملاتړ د څه باندې ۱۲۰ میلیونو افغانیو په لګښت د اوبو رسولو ۲۲ شبکې جوړېږي.د یاد ولایت د کلیو د بیارغونې او پراختیا رئیس مولوي قسمت الله مبارز وویل چې د یاد شمېر شبکو د جوړولو هوکړه د یونیسف سازمان له استازو سره لاسلیک شوې چې له مخې به یې د ننګرهار په ۱۷ ولسوالیو کې د ۱۲۰ میلیونه ٤۲۸ زره ۱۱۵ افغانیو په لګښت د اوبو رسولو ۲۲ شبکې جوړېږي.

نوموړي زیاته کړه چې دا پروژې د انډولیز پراختیایي




پلان پر اساس په اچین، نازیانو، خوږیانو، حصارک، پچیراګام، بتي کوټ، شینوارو، سپین غر، مومندره، دربابا، چپرهار، کوټ، روداتو، ګوشتې، سرخرود، دره نور او بهسودو ولسوالیو کې پلې کېږي...۷مخ

هېواد



# سرلیکنه



## د اسلامي امارت د یووالي پر ضد تبلیغاتي جګړه

په دې وروستیو کې ځینې رسنۍ او کړۍ هڅه کوي چې د اسلامي امارت د مشرانو ترمنځ د اختلافاتو اوازې خپرې کړي، خو دا لومړی ځل نه دی چې داسې هڅې کېږي، بلکې د اشغال پر ضد د اسلامي امارت د مبارزې هر مهال او له هغه وروسته د بېلابېلو داخلي او خارجي کړیو له لوري د تبلیغاتو یو لړ منظمې هڅې شوې دي، چې موخه یې د افغانستان د ثبات ګډوډول او د اسلامي امارت د داخلي یووالي کمزوري کول دي.

دا څرګنده ده چې د اسلامي امارت مشران د هېواد د استقلال، رغونې او د اسلامي نظام د پیاوړتیا لپاره ژمن دي. د اسلامي امارت د مشرتابه ترمنځ د قوي اعتماد، همغږۍ او متقابل احترام فضا حاکمه ده او که څه هم ځینې رسنۍ دا هڅه کوي چې بېلابېل راپورونه خپاره کړي، خو تر اوسه هېڅ داسې کره شواهد نه دي وړاندې شوي، چې د اختلافاتو ادعاوې تأیید کړي.

د تبلیغاتي جګړې تر شا دوه عمده موخې دي:

د اسلامي امارت د یووالي زیانمنول: د دې لپاره چې د افغانستان دننه او بهر د خلکو باور کمزوری شي، ځینې حلقې د مشرانو ترمنځ د اختلافاتو خبرې خپروي، څو دا وښيي چې اسلامي امارت د داخلي ستونزو ښکار دی.

د نړیوالو ذهنیت بدلول: ځینې هېوادونه او د هغوی رسنۍ غواړي نړیوالو ته دا وښيي چې اسلامي امارت یو منظم او باثباته نظام نه دی، څو له دې لارې د افغانستان د مشروع حاکمیت پر وړاندې خنډونه جوړ کړي. خو واقعیت دا دی، چې د اسلامي امارت مشران له هغو ټولو تجربو خبر دي، چې د افغانستان د تېرو کلونو سیاسي بې ثباتۍ ته یې لاره هواره کړې وه. همدا دلیل دی چې دوی تل د خپل یووالي ساتنې ته لومړیتوب ورکړی. که اسلامي امارت په تېرو دریو کلونو کې له داخلي اختلافاتو سره مخ وای، نو نه به یې د هېواد حاکمیت ټینګ کړی وای، نه به یې امنیتي لاسته راوړنې درلودای، او نه به یې اقتصادي پرمختګ ته زمینې برابرې کړې وای.

د افغانستان د ولس لپاره مهمه دا ده چې د تبلیغاتو پر ځای، د واقعیتونو پر بنسټ قضاوت وکړي. که موږ نن ورځ وګورو، اسلامي امارت د هېواد د ثبات، اقتصادي ودې او سیاسي پیاوړتیا لپاره هڅې کوي. دا هڅې یوازې د قوي مشرتابه او یووالي له برکته شونې دي.

لنډه دا چې د اسلامي امارت د یووالي د کمزوري کولو هڅې به بریالۍ نه شي، ځکه چې دا یووالی د یو شخص، ګوند یا ډلې پر بنسټ نه دی، بلکې د اسلامي ارزښتونو، اخلاص او د هېواد د خیر پر بنسټ ولاړ دی. دښمنان باید دا درک کړي چې اسلامي امارت یوازې د اشخاصو مجموعه نه ده، بلکې د یوه عقیدوي نظام استازیتوب کوي او د یو واحد هدف پر لور پرمختګ ته دوام ورکوي.

# د اسلامي نړۍ اقتصادي خپلواکي ـ خوب که حقیقت؟

**محمد قاسم عزام**

د اسلامي نړۍ اقتصادي خپلواکي یوه له مهمو مسایلو څخه ده، چې د تاریخ په اوږدو کې یې د مسلمانانو پر ټولنیز، سیاسي او فکري پرمختګ ژوره اغېزه کړې. د اسلامي تمدن د زرین عصر له دورې نیولې تر معاصرې نړۍ پورې، مسلمانانو تل هڅه کړې چې خپل اقتصادي نظام لـه بهرني کنټرول څخه خلاص کړي او له خپلو طبیعي منابعو، سوداګرۍ او مالي بنسټونو څخه د خپلواکې ودې لپاره کار واخلي. خو نن ورځ، اسلامي هېوادونه لا هم له نړیوال مالي انحصار، د پانګوال نظام له احتکار او د اقتصادي استثمار له کړکېچونو سره مخ دي، چې د دوی د اقتصادي ثبات ته جدي زیان رسوي.

د اسلامي نړۍ اقتصادي کمزورتیا د څو مهمو عواملو پایله ده. د استعماري دورې ناوړه اغېزو اسلامي هېوادونه د لویدیځ اقتصادي نظام تابع کړل، چې تر نن ورځې پورې یې زیانونه محسوس دي. غربي هېوادونو نه یوازې د مسلمانانو طبیعي زېرمې ولوټلې، بلکې د دوی اقتصادي نظام یې داسې تنظیم کړ چې د نړیوال پانګوال نظام لپاره ګټور، خو د مسلمانانو لپاره زیانمن وي. سودي بانکداري، د نړیوالو پورونو فشار، د داخلي صنعتي بنسټونو کمزورتیا او د اسلامي هېوادونو ترمنځ د اقتصادي یووالي نشتوالی، هغه عوامل دي چې د مسلمانانو اقتصادي خپلواکي یې له جدي ګواښ سره مخ کړې ده.

د نړیوال مالي نظام یو له تر ټولو زیان رسوونکو وسایلو څخه سودي بانکداري ده، چې د اسلامي اصولو خلاف عمل کوي او د اقتصادي استثمار لپاره کارول کېږي. نړیوال بانک، نړیوال وجهي صندوق (IMF) او د لویدیځ مالي موسسې، د پورونو، مالي بندیزونو او اقتصادي شرطونو له لارې اسلامي هېوادونه په داسې حالت کې ساتي چې د دوی اقتصادي پرمختګ محدود پاتې شي.

په اسلامي هېوادونو کې د نړیوالو مالي موسسو د استثماري سیاستونو ښکار هېوادونو ښه مثالونه مصر، پاکستان، اندونیزیا او تونس دي.

**۱- مصر:**

مصر د نړیوال بانک او IMF د پورونو له امله سخت مالي مشکلات تجربه کړي دي. په ۲۰۱۶م کال کې، د مصر حکومت له نړیوال وجهي صندوق څخه ۱۲ میلیارده ډالره پور واخیست، چې د سختو اقتصادي اصلاحاتو شرطونه پرې تحمیل شول. د دې اصلاحاتو له امله، د مصر ملي کرنسي (پونډ) د ډالرو پر وړاندې خپل ارزښت تقریباً نیمایي له لاسه ورکړ، د توکو بیې لوړې شوې او د عامو خلکو اقتصادي فشار نور هم زیات شو. همداراز، د پورونو د سود د ورکړې لپاره مصر اړ شو چې خپلې ملي شتمنۍ، لکه د دولتي شرکتونو ونډې، د بهرنیو پانګوالو لپاره وپلوري.

**۲- پاکستان:**

پاکستان له اوږدې مودې راهیسې د نړیوال وجهي صندوق پورونو ته اړتیا لري. د ۲۰۱۹م کال د IMF پور، چې شاوخوا ۶ میلیارده ډالره و، له سختو اقتصادي شرایطو سره مخ شو، چې د مالیاتو زیاتوالی، د انرژۍ د سبسایډیو کمښت او د روپۍ د ارزښت کمښت یې پایله وه. د IMF د شرطونو له امله، د پاکستان د خلکو د ژوند معیار سخت اغېزمن شو او د دې هېواد اقتصادي خپلواکي لا کمزورې شوه.

**۳-اندونیزیا:**

په ۱۹۹۷م کال کې، د آسیا مالي بحران اندونیزیا ته سخت زیان ورساوه. له دې بحرانه وروسته، د نړیوال بانک او IMF د پورونو له امله، اندونیزیا مجبوره شوه چې خپل دولتي شرکتونه، مهم اقتصادي سکتورونه او بانکي سیستم د نړیوالو پانګوالو لپاره خلاص کړي. دا کار د دې لامل شو چې د اندونیزیا اقتصاد د نړیوالو مالي موسسو تر کنټرول لاندې پاتې شي.

**۴- تونس:**

له عرب پسرلي وروسته، تونس له سخت اقتصادي بحران سره مخ شو. له ۲۰۱۶م کال څخه راپدېخوا، تونس له IMF څخه د ۲.۹ میلیاردو ډالرو پور واخیست، چې د سختو اقتصادي اصلاحاتو غوښتنه یې ورسره کوله. دا اصلاحات د عامو خلکو د ژوند د سختوالي، د انفلاسیون د زیاتوالي او د دولتي خدماتو د کمښت سبب شول.

دا ټول مثالونه ښيي چې نړیوال مالي نظام، د پورونو، سودي بانکدارۍ او اقتصادي اصلاحاتو تر نوم لاندې، اسلامي هېوادونه داسې مالي انحصار ته راکاږي چې د دوی خپلواکي محدودوي. د پورونو شرایط داسې ترتیب شوي چې دا هېوادونه د تل لپاره د IMF او نړیوال بانک تابع پاتې شي او هېڅکله په خپلو پښو ونه درېږي. د سودي سیستم له امله، پورونه دومره لوړېږي چې د اسلامي هېوادونو ټول عواید د سود ورکړې ته ځي، نه د اقتصادي ودې، د خلکو د فقر د کمښت، یا اساسي خدماتو ته ودې ورکولو ته.

د دې ستونزې د حل لپاره، اسلامي هېوادونه باید د خپلو منابعو مدیریت په خپل لاس کې واخلي، د سودي بانکدارۍ پر ځای د اسلامي مالي نظام بدیلونه رامنځته کړي او د نړیوالو مالي موسسو پر ځای د خپلو منځو اقتصادي همکارۍ ته وده ورکړي. د اسلامي بانکدارۍ، د تجارت د اسلامي اصولو او د پانګونې د نویو ستراتیژیو له لارې، اسلامي هېوادونه کولی شي له نړیوال مالي استثمار څخه خلاصون ومومي. د اسلامي نړۍ د اقتصادي خپلواکۍ لپاره ضروري ده چې مسلمانان خپل مالي بنسټونه د اسلامي اصولو پر اساس تنظیم کړي. اسلامي بانکداري، چې د سود پر ځای د مشارکت، مرابحې او مضاربې پر اصولو ولاړه ده، باید تقویه شي، تر څو اقتصادي وده د اسلامي نظام مطابق شکل واخلي. لله الحمد، اسلامي امارت په دې برخه کې عملي ګامونه پورته کړي، د اسلامي بانکدارۍ نظام ته یې وده ورکړې، د سودي معاملو مخنیوی یې کړی او د داخلي تولید، صادراتو او تجارت د ودې لپاره یې هڅې پیل کړي، چې دا به په راتلونکي کې ډېرې مثبتې پایلې ولري. همداراز، اسلامي هېوادونه باید د نړیوالو مالي بندیزونو او احتکار پر ضد یوه واحده اقتصادي ستراتیژي جوړه کړي، چې د سوداګرۍ، پانګونې او د تولیدي منابعو د مدیریت لپاره نوې لارې ومومي. د اسلامي هېوادونو ترمنځ اقتصادي همکاري باید پراخه شي. که اسلامي هېوادونه خپل منځ کې د سوداګرۍ ځانګړې امتیازات یو بل ته ورکړي، خپل صنعتونه تقویه کړي او د داخلي تولید پر وده تمرکز وکړي، نو د نړیوال پانګوال نظام ... ٦مخ

> پاکستان له اوږدې مودې راهیسې د نړیوال وجهي صندوق پورونو ته اړتیا لري. د ۲۰۱۹م کال د IMF پور، چې شاوخوا ۶ میلیارده ډالره و، له سختو اقتصادي شرایطو سره مخ شو، چې د مالیاتو زیاتوالی، د انرژۍ د سبسایډیو کمښت او د روپۍ د ارزښت کمښت یې پایله وه. د IMF د شرطونو له امله، د پاکستان د خلکو د ژوند معیار سخت اغېزمن شو او د دې هېواد اقتصادي خپلواکي لا کمزورې شوه.

# رسنیزه جګړه څرنګه مهار کړو؟

**سالمزی**

په هېواد کې د اسلامی نظام حاکمیت، امنیت او عدالت رامنځ ته کول، دا ټول هغه څه دي چې د هېواد کورني او بهرني دښمنان یې په وېره کې اچولي. غربي اشغالګرو لښکرو چې کله په نظامي ډګرکې له شرموونکې ماتې سره مخامخ شول او ټیټې سترګې زموږ له هېواده تېښتې ته اړ شول، نو له افغان مؤمن او مېړني ملت سره یې د خپلې کرکجنې دښمنۍ په موخه رسنیزه جګړه پیل کړه او د انټرنېشنل، آمو، آزادۍ، بي بي سي، اشناغږ او په لسګونو نور ټلویزیوني چینلونه او راډیویي دستګاوې یې رامنځ ته او جوړې کړې او زموږ د هېواد یو شمېر پېژندل شوي مزدور خبریالان چې د یادو استعماري هېوادونو له لوري ووېستل شول او په یو شمېر اروپايي او امریکايي هیوادونو کې د قبولیت اسناد هم په دې هدف ورکړل شول چې د هغوی پرمټ دغه رسنیزه او تبلیغاتي جګړه مخ ته یوسي، پر واقعیتونو پښې کېږدي او د ملت او حکومت ترمنځ واټن او فاصله ایجاد کړي او زموږ د هېواد او ملت دښمنان او ملي خاینان چې له اشغالګرو سره یو ځای له افغانستانه په تېښته بریالي شوي خپلو رسنیو ته ور دعوت کړي او د افغانستان د اسلامي امارت او اسلامي نظام پرضد له واقعیته لرې شایعات او پوچې څرګندونې وکړي ترڅو ملت پر خپل حاکمیت بې باوره او عامه اذهان مغشوش کړي، خو زما په اند دا ټولې مذبوحانه هلې ځلې د اوبو ځګ ته له لاس اچولو پرته بله معنی نه لري. الحمدلله افغان غیور او قهرمان ملت دا هرڅه تجربه کړي او د هغوی دغه بې ځایه تحرکات او له حقیقته لرې څرګندونې ردوي او غندي.



په سر کې مو ذکر وکړ چې رسنیزه جګړه څرنګه مهار کړو؟ راځئ یو بل ته لاسونه ورکړو، څرنګه چې مو له اسلام او هېواد څخه د دفاع په موخه د غربي او شرقي یرغلګرو د مغرورو او وحشي ځواکونو د غرور ښکرونه ورمات کړل، یو ځل بیا د خپل هېواد، اسلام او د خپل ملت د ژغورنې په لاره کې په خپلو کې سره یو موټي شو، قومي، مذهبي، ژبنیو او سمتي تعصباتو ته د پای ټکی کېږدو، خپلمنځي ستونزې او مشکلات د خبرواترو له لارې هوار کړو او د بهرنیو دښمنانو په مقابل کې په یوه صف کې سره ودرېږو، ځیرک او هوښیار اوسو چې یو ځل بیا د شهیدانو په ملک کې د شهیدانو د قاتلینو د حاکمیت او په خپلو کورنیو چارو کې د بهرنیو استخباراتي شبکو د لاسوهنې او مداخلې دروازه د تل لپاره بنده او وتړو او د خپل ګران او محبوب هېواد د سمسورتیا او پرمختګ لپاره متې راونغاړو، خپل اقتصاد پیاوړی کړو، له خپلو سرښارو او یاغي سیندونو څخه په برښنا او د ځمکو خړوبولو کې ګټه واخلو، تعلیمي نظام غښتلی او پرمختللی کړو، ترڅو د نړۍ له پرمختللي کاروان سره د سیالۍ جوګه شو. همدارنګه زموږ هېواد یو زراعتي هېواد دی، خپل زراعت ته باید پراختیا ورکړو، ترڅو د کرنې او حاصلاتو په برخه کې نورو ته احتیاج نه شو، د هېواد له طبیعي ذخایرو څخه اعظمي ګټه واخلو، کارخانې جوړې کړو، ځوانانو او بې روزګارو خلکوته د تعلیم، حرفوي زده کړو او کار زمینه برابره کړو، د خپلو شهیدانو د قربانیو درناوی وکړو، د خپلو کونډو خویندو او یتیمانو لاسنیوی وکړو، د خپل ملت غوښتنو ته په ورین تندي ځواب ووایو او په عادلانه توګه یې ستونزې هوارې کړو. لیکوالان، شاعران او ژورنالیستان هغه چې اسلام، هېواد او ملت ته ژمن دي تقدیر کړو، چې په دې توګه وکړای شو رسنیزه جګړه مهار کړو.

# په افغانستان کې د زېوراتو د استعمال مخینه

**حیات الله حلیم**

د لومړنیوانسانانوچې لومړنۍ اړتیاوې پوره شوې، نود خپل ذوق د تسکین لپاره یې د تجملاتو په لور مخه وکړه، د ځان له پټولو وروسته یې امېلونه، غوږوالۍ، وښي، غاړکۍ، ګوتیې، ګلمېخۍ اود سینګارنورډول، ډول شیان جوړ کړل او د ځانونود ښکلا هڅه یې وکړه.

دا ټول هغه څه دي چې زرګونه کاله وروسته یې پسولونه، زیورات، تصویرونه، سکې، مجسمې او نورې داسې نخښې په لاس راغلې چې د هغې زمانې د راز راز پسولونو له استعمال څخه یې ترجماني کوله، په آریانا یا لرغوني افغانستان کې په زرهاوو کلونه وړاندې له پسولونو څخه کار اخیستل کېده، ځکه آریایان هم ذوق خوښوونکي وو او له سینګار سره یې لوړه مینه درلوده.

د شبرغان د طلا تپې په کیندنو کې له ۲۲ زرو زیات له سرو زرو جوړشوي داسې زیورات ترلاسه شول چې زیاته برخه یې د بدن د بېلا بېلا برخود ښکلا او تزئین لپاره د پسولونو په بڼه جوړ شوې وو، په دې ترلاسه شویو زیوراتو کې چې عمر یې تر درې نیمو زرو کالو پورې رسېده، لاسبندونه، پاولي، وښي، امیلونه، غاړکۍ، ګلمیخۍ، ګوتیې، جولۍ او ګلربزۍ شاملې وې او دا ټول شیان په دومره لوړمهارت او ظرافت جوړشوي وو چې نړۍ ورته حیرانه شوه، ځکه دغو پسلونواو زیوراتو د نړۍ د موزیمونو دوره هم ترسره کړه.

د شبرغان له طلاتپې څخه ترلاسه شوي پسولونه د افغانستان د لرغونو اوسېدونکود ښکلي هنري ذوق او پیاوړي هنري استعداد څرګندویې کوي او دا پسولونه د هغه وخت له شاهانو، ملکو اوشهزادګیو سره اړه لري چې ددوی له مړینې وروسته له دوی سره یو ځای په قبرونوکې خښ شوي او له زرګونو کلونو وروسته اوس د دوی له قبرونو را ایستل شوي دي، د دې زیوراتو تنوع او راز راز والی ښيي چې زرګونه کاله دمخه افغاني زرګرانو د پسول په برخه کې ښې تجربې درلودې اوڅرګندوي چې دا تجربې له هماغې زمانې بیا تر نن پورې د افغاني هنرمندانو په وجود کې د مهارت په تحفظ سره زموږ تر زمانې را رسېدلې دي.

په افغانستان کې د پسول



جوړولو هنري لړۍ یوازې په پاچاهانو او شاهزادګیو پورې اړه نه درلوده، بلکې غریبو خلکو هم د خپل هنري ذوق د تسکین لپاره ځان ته ... ٦مخ

# د ډالرو په راټیټېدو سره بیا هم د خوراکي توکو بیې لوړې دي!؟


جمیل باور

په دې وروستیو کې د ډالرو پر وړاندې د افغانیو ارزښت یو څه راښکته شو، طبیعي خبره ده چې د اسعارو بیې د خلکو په غوښتنه ښکته پورته کېږي، څومره چې د خلکو اړتیاوې زیاتېږي هغومره ورسره په پولي واحدونو کې بدلون راځي، خو داسې نه چې په ټول هېواد کې د ډالرو یا کوم بل پولي واحد په لوړېدو سمدستي د لومړنیو او خوراکي توکو بیې تر اسمانه پورته لاړې شي، داچې اوس د اسلامي امارت په هلو ځلو د افغانیو ارزښت لوړ شوی، خو لا هم په ځینو ځایو کې د لوړو شویو خوراکي توکو بیې نه دي را ښکته شوې او خلک له مسئولو چارواکو غوښتنه کوي، چې پر بازار دې څار ډېر او د خوراکي توکو بیې دې راښکته کړي.
په افغاني ټولنه کې که له یوې خوا غریب او بېوزله خلک په لوړ نرخ د لومړنیو خوراکي توکو د پېرلو وس نه لري، خو له بلې خوا همدغه لوړ نرخونه د هټیوالو بازارونه هم کمرنګه کولای شي، ډېر دکانداران دغه ستونزه مني او وايي، له هغې ورځې چې ډالر پورته تللی، فروشات ښکته راغلي او خلک د اخیستلو وس نه لري. یوه بشکه غوړي په ۹۰۰ افغانۍ وو اوس په ۱۱۰۰ افغانۍ دي. له دولته غوښتنه کوي چې ډالر له نرخونو حذف کړي او ټول پېر او پلور په افغانیو ترسره شي،خو مسئولین بیا پر بازار او نرخونو د دوامداره څارنې خبره کوي او وايي: له احتکار کوونکو سره به جدي چلن وکړي.
له تېرې یکشنبه راهیسې د ډالرو بیه ۵ افغانۍ راټیټه شوې، خو کابل کې د خوراکي توکو بیې نه دي راټیټې شوې، په رښتیا هم نه یوازې اوړه، بلکې ګاز، غوړي، وریجې، کچالو او د پیازو قیمتونه لوړ شوي، سړی حیران پاتې شي، چې په افغانستان کې ولې ټوله راکړه ورکړه په ډالرو کېږي، بله داچې ولې د سر سترګې خوړل شوي، چې هر شی په ډالرو پورې تړل کېږي، هېڅ وخت داسې نه پورې تړلې وبولو، څکه موږ خپله ښه نه یو او هر څه کې خپلې ګټې مهمې ګڼو، موږ ډېر ځله له داسې ستونزې سره مخ شوي یو، چې د هېواد په کچه هر تجار او هټیوال خپل مال د احتکار لپاره



ده پېښه شوې، چې یو تجار دې همزمان لومړني خوراکي توکي له بهرنیو هېوادو را وارد کړي، طبعاً دا وخت نیسي، یعنې داسې نه ده پېښه شوې چې د ډالرو یا کومې بلې کرنسۍ د ارزښت مطابق دې خوراکي توکي را نیول شوي وي او په هماغه قیمت دې بازار کې د خلکو په چوپړ کې ورکړل شي،معلومدار چې یو شمېر محتکر هټیوال او تجاران دغه کار د ډېرې ګټې وټې لپاره کوي او د ډالرو پر وړاندې د افغانیو ارزښت تر پوښتنې لاندې راولي !
دغه راز د افغانستان بانک د افغانیو د ارزښت د ساتنې او اقتصادي ثبات لپاره خپلې هڅې دوامدارې ساتلې او په تېرو کلونو کې افغانۍ د سیمې د با ثباته اسعارو په کتار کې راغلې ده، دا لاس ته راوړنه د مرکزي بانک د هڅو، د هېوادوالو د باور، د دولتي ادارو د همکارۍ او د ملي سوداګرو د ملاتړ پایله ده.
خو زما په فکر دا مسئله یوازې په حکومت پورې تړلې نه ده او نه باید د هر څه حللاره په حکومت په ګدامونو کې ذخیره کوي او د اسعارو مطابق یې پر خلکو پلوري. مثلاً: یو ټن اوړه یې په ۳۵۰ ډالره راوړي وي، خو کله چې د ډالرو بیه لوړه شي، دوی هماغه اوړه چې په ارزانه بیه پېرل شوي او ګدامونو کې ذخیره شوي، د ورځني نرخ مطابق یې پر خلکو پلوري،چې دا د اسلام او شریعت خلاف کړنه ده، یا داچې ډېر ځله موږ د دې شاهدان یو، چې د هوا په سړېدو یا رمضان المبارک میاشت کې د هر څه بیې لوړېږي، یو شمېر دکانداران، سوداګر او ګڼ شرکتونه د هوا له بې ساري سړېدو سره سم په بازارونو کې د خلکو د تقاضا اړوندو توکو ته د لاسرسي په برخه کې لاسي او تصنعي کموالی راولي او بازار ته یې د دې لپاره د خرڅلاو لپاره نه وړاندې کوي چې د خلکو د تقاضا په زیاتېدو سره یې بیه لوړه شي چې دغه ناوړه عمل ته په اسلام کې احتکار وايي او څوک چې خپل سوداګریز توکي د بیو د لوړولو په نیت ذخیره کوي، محتکر بلل کېږي؛ حال دا چې احتکار په اسلام کې مطلق حرام دی.
په دې اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: څوک چې تر څلوېښتو ورځو زیات خوراکي توکي احتکار کوي؛ نو دغه محتکر له الله جل جلاله او الله تعالی له ده څخه بېزاره کېږي، که چېرې یو څوک په یو کلي کې وږی پاتې شو،نو الله تعالی به د دغه شخص له امله ټول کلی له خپل رحمت څخه محروم کړي.په بل ځای کې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: که څوک خوراکي مواد له درېوو ورځو زیات د دې لپاره ساتي او بازار ته یې نه وړاندې کوي چې بیه یې لوړه شي؛ نو که چېرې بیا دغه مواد صدقه هم کړي، نو د ګناهونو تلافي یې نه شي کولای، همدارنګه په دې برخه کې قران کریم د ایثار او قربانۍ درس ورکوي او فرمایي: د مؤمنانو له اوصافو نه یو صفت دا دی چې د قحط پر مهال نورو ته پر خپل ځان ترجیح ورکوي، که څه هم په خپله محتاج وي.له همدې امله، لومړی په خپلو ملي سوداګرو غږ کوو چې په ستونزمنو حالاتو کې د خپلو هېوادوالو مرسته وکړي، نه دا چې هغوی ته په قصدي ډول ستونزې پیدا کړي او بیا د کورنیو چارو وزارت، کابل ښاروالي، د سوداګرۍ وزارت او نورې اړوندې اداري د دوی مسئولیتونو ته متوجه کوو چې د بازار او بیو د کنټرول لپاره کوټلي ګامونه واخلي؛ څو په دغسې ترینګلو شرایطو کې زموږ ولس ته نورې ستونزې پیدا نه شي.د دې تر څنګ له عام ولس نه مو هیله دا ده چې هر کله دغسې وګړي (محتکرین) چېرته ویني او د احتکار په اړه یې معلومات لري، نو اړوندو حکومتي ادارو ته دې معرفي کړي، څو له قانون سره سم مجازات شي.

# دغالۍ اوبدونکو په ملاتړ دوی په اقتصادي ژوند کې بدلون رامنځته کړئ


شاه محمود درویش

افغاني غالۍ واقعاً نن سبا په نړۍ کې ساری نه لري او په ټوله کې باید وویل شي چې غالۍ اوبدل په افغانستان کې مهم تولیدي صنعت دی او په بېلابېلو وختونو کې یې زموږ د ګران هېواد په اقتصادي برخه کې هم ارزښتمن رول لوبولی دی، خو سره له دې چې اوس هم په نړیوالو بازارونو کې افغاني غالۍ ښه نوم او مارکیټ لري، خو په کور دننه ددغه صنعت یو شمیر کاروباریان له یو لړ ستونزو سره مخامخ دي او د افغانستان اسلامي امارت له اړوندو مسئولو ارګانونو څخه ددې هیله لري چې دغالۍ اوبدونکو د هراړخیز ملاتړاو همکاري ترڅنګ ددغه صنعت د ودې لپاره ګڼ شمیر سهولتونه او آسانتیاوې رامنځته کړي اوهم ورته په نړیواله کچه بازارموندنه وکړي څکه د افغانستان غالۍ د نړیوالو لپاره یو خاص سبک او یوځانګړي ارزښت لري چې د نړۍ هیڅ یو هېواد نشي کولای د افغانستان د غالیو ځای ونیسي.
هېره دې نه وي، که څه هم په دې وروستیوکې د صنایعو او سوداګرۍ وزارت مسئولینو ویلي؛ هڅه کوي چې بهرته د غالیو د صادراتو کچه لوړه کړي، خو هیله ده چې د افغانستان د اسلامي امارت اړوند ارګانونه دهېواد د غالیوصنعت کاروباریانو ته ددغه صنعت د پرمختګ لپاره لازمې آسانتیاوې برابرې او هراړخیزې مرستې هم له دوی سره وکړي.
د یادونې وړ ده، له نېکه مرغه چې په دې وروستیو کې د کډوالو لپاره د ملګرو ملتونو عالي کمېشنرۍ یو ان اچ سي آر په یوې خبرپاڼه کې ویلي؛ د هرات په انجیل ولسوالۍ کې ۴ سوه تنو ته چې اکثریت به یې ښځې وي د غالۍ اوبدلو ترڅنګ د پروسس یو مرکز هم جوړوي. یاد سازمان خبر ورکړي، چې د دغه مرکز ودانیزې چارې روانې دي او په نږدې راتلونکې کې به له بشپړیدو وروسته په کار پیل وکړي. دغه سازمان خبر ورکړي چې په دغه مرکز کې به د غالیو د پروسس برخه هم وي، چې غالۍ پلور ته چمتو شي. د کډوالو لپاره د ملګرو ملتونوعالي کمېشنرۍ زیاته کړې چې دغه مرکز د سعودي عربستان په مالي مرسته جوړېږي، چې د غالیو اوبدلو د صنعت د پیاوړتیا په برخه کې به ځانګړی رول ولوبوي. د یاد سازمان د معلوماتو له مخې، د دغه مرکز جوړیدل به په سیمه د مسئولینو په وینا دغه مرکز د ۲۲٦ زره امریکایي ډالرو په لګښت جوړېږي، چې چارې به یې تر راتلونکو شپږو میاشتو پورې بشپړې شي. د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزارت مسلکي مرستیال د دغه مرکز د جوړولو چارو د پرانیستې مراسمو پر مهال ویلي وو، چې د دې پروژې د چاروپه بشپړېدو سره به له ګاونډیو هیوادونو د را ایستل شویو کډوالو په ګډون ۵۰۰ کسانو ته د کار زمینه برابره شي، له شک پرته چې دا واقعاً ډیرغوره اقدام دی، پاک الله(ج) دې وکړي چې د اسلامي امارت اړوندې مراجع د هېواد د غالۍ اوبدونکو د نوموړي صنعت د ودې او پراختیا په برخه کې سربېره پردې چې خپلې هیڅ راز مرستې ونه سپموي، بلکې د نورو خیریه موسسو، بنسټونو



کې د غالیو اوبدونکو په اقتصادي ژوند کې د پام وړ بدلون رامنځته کړي. همدارازڅه موده وړاندې هم ویل شوي وو؛ د کډوالو په چارو کې د ملګرو ملتونو عالي کمېشنرۍ له لوري د جوزجان ولایت په اقچې ولسوالۍ کې دغالیواوبدلو دیوه مرکزد جوړولو چارې پیل شوې دي.
او په ټوله کې د قدرمنو پانګوالو هراړخیزې پانګونې او همکارۍ هم راجلب کړي ترڅو په مرسته یې د تل لپاره زموږ د هېواد دغه ښکلی صنعت لاپراختیا ومومي او په نړیواله کچه هم په مختلفو نندارتونونو کې لومړی مقام ولري او په دې توګه له دې پلوه هم زموږ د هېواد... ٦مخ

# همه مردم باید در پاکیزه نگهداشتن و صفایی کشور خود تلاش نمایند


عزیزی

بدون تردید که حریم شهری مکان بسیار حساس و آسیب پذیر می باشد،انواع کثافات،آلوده گی هوا و ده ها ناهنجاری و صداهای گوش خراش از عوامل برهم زننده تعادل محیط زیست شهرها به حساب می آید،لذا عدم رعایت عوامل محیط زیست باعث آلوده گی های گوناگون محیط زندگی می گردد. بنابرین لازم است که مسؤلین امور و موظفین ساحات شهری با بکار گیری روش‌های اصولی،قانونی و اجتماعی جهت دستیابی به محیط زیست مساعد با تمام عوامل آلوده گی ها و آلوده کننده به کار و مبارزه بپردازند و دو عامل عمده در تامین محیط زیست مناسب در اولویت قرار گیرد:
-ایجاد سرسبزی و پاکیزگی ساحات شهری
-مبارزه با انواع آلوده گی ها بالاخص آلوده گی صوتی و بهداشتی. کثافات در حقیقت از مواد اضافی مصرفی خانگی و مراکز فروش و تولید مواد از طرف محل های تجارتی و یا بازمانده های ساحات




تولیدی،صنعتی تشکیل می گردد. در جابجایی،حمل ونقل کثافات و حفظ پاکیزگی محیط شهری باید از هر روش ممکن استفاده شود.جمعآوری کثافات و حفظ محیط زیست با توجه به میزان حجم و نوعیت مواد اضافی در مناطق مختلف متفاوت است. میکانیزم اجرایی کاهش آلودگی و پاکیزه نگهداشتن محیط ارتباط مستقیم با فرهنگ و آگاهی های عمومی مردم دارد.برای بهبود کیفیت و نتایج حاصله ضرورت آموزش های اجتماعی،فرهنگی و طرح های ساده و اجرایی بسیار موثر است.استفاده از تجربیات دیگران در جهت حل مشکلات این امر مهم خواهد بود.در شرایط فعلی مشوره با موسفیدان،وکیلان گذر و منطقه یکی از ضرورت‌هایست که برای تطبیق اهداف اجرایی،اجتماعی و آگاهی بخشی عمومی در راستای ارتقای فرهنگ شهری کمک موثری خواهد نمود.که از طریق برنامه ریزی و جلب همکاری‌ها و کمک های مالی ،معنوی و مشورتی اهالی محل و کوچه به طور مثال انتقال کثافات،پاکیزه نگهداشتن محیط و گذرها از طریق مختلف امکان پذیر می باشد.حفاظت محیط زیست که یک بخش آن با جمعآوری کثافات جامد و دفع آبهای کثیف تحقق می یابد مثل سایر فعالیت های خدمات شهری با روش‌های گوناگون با توافق ، هماهنگی و مشارکت گروه های مختلف جامعه قابل اجراء می باشد،ممکن است با مدیریت مستقیم و غیرمستقیم با همکاری سکتور خصوصی بطور مداوم عملی گردد.دراین عرصه ارگانهای ... ص۶



# هرات د آریانا دویم متمدن ښار و


نعمت الله

هرات د افغانستان یو داسې لرغونی ښاردی چې تاریخ یې د کره روایاتو پربنا زرګونه کاله وړاندې د آریایانو زمانو ته رسیږي، نوځکه دغه ښارد بلخ له آریایی مدنیت وروسته د افغانستان دویم متمدن ښارپېژندل شوی او ګڼل شوی دی، د تاریخي روایاتو له مخې آریایان چې کله په بلخ کې وپنځېدل، نود ختیځ او لوېدیځ په لوریې نویو جغرافیاوو ته د اسکان لپاره پښې سپکې کړې هغوی چې د ختیځ په لوري ولاړل یوه برخه یې له پاراپامیزاده تېر شول او ترهند پورې ورسېدل اوبله ډله یې چې دلوېدیځ په لوري ولاړل ترډېره په هرات کې تم پاتې شول اوهلته یې دبلخ په شان ښکلی مدنیت رامنځ ته کړ، خوله اوږدې مودې وروسته کله چې دوی دلته هم وپنځېدل، نود ایران اواروپایي هېوادونو په لورولاړل، دهرات آریایانوله هماغې زمانې څخه له تمدن سره بې کچې مینه درلوده، نوځکه وخت په وخت په دې جغرافیا کې ادیبان، نقاشان اوشاعران پنځېدلي، یوناني سکندرچې پر ایران حمله وکړه او ددغه ملک تاسیسات یې دیوه پخواني (اروړ) پربنا وران اوویجاړکړل، نو پر هرات هم را دمخه شو، دغه ښارېې هم تریوه برېده وران کړ، خوکله چې



پر هرات غالب شو، ورانې اوویجاړې یې له سره ترمیم او ورغولې، ځکه پوه شو چې هرات ځانګړې جغرافیا ده او د یونان په خرابۍ کې یې هخامنشیانوسره برخه نه ده اخیستې.

خو له بده مرغه چې چنګیزي یرغل دهرات ښکلی ښارد افغانستان دنوروشمال ختیځو اومرکزي ښارونوپه څېروران او ویجاړکړ اویوازې د (آل کرت) کورنۍ دهرات په ښارکې له چنګیزي مظالموڅخه ددغې کورنۍ دبا تدبیره مشرانو په هوښیارۍ بچ پاتې شوه، دآل کرت کورنۍ دهرات په کچه یوه علم پالونکې اومتدینه کورنۍ وه، د ګازرګاه د مدرسې ودانۍ، داختیارالدین کلا او دهرات هفت جوش دیګ چې اوس هم دهرات د جامع جومات په انګړکې اېښودل شوې دهمدې دورې د جوړوشویوتاریخي آثاروپه ډله کې شمېرل کېږي، د ګوډ تیمورله مړینې وروسته کله چې دهغه پراخه امپراتوري د هغه د اولادونو ترمنځ وویشل او وپاشل شوه، له نیکه مرغه خراسان د تیمورد کوچني علم پالونکي زوی شاهرخ میرزا په برخه ورسېد چې نوموړي دهرات ښارد خراسان د پلازمېنې په توګه وټاکه، د شاهرخ میرزا ملکه ګوهرشاد بیګم هم چې له پوهې اوادب سره یې ډېره مینه درلوده اوپه نسب دهرات له خلکوڅخه وه د خپلو خدمتونو په لړ کې یې د ګوهرشاد په نوم یوه لویه دیني مدرسه جوړه کړه.

شاهرخ عادل پر علم اوصنعت مین اوپر ملت زړه سواندی پاچاه و، د ده د واکمنۍ په زمانه کې هرات ښا ر ډېر پرمختګ وکړ،ښکلې ودانۍ اوکتابتونونه پکې جوړشول او د مدنیت په لوریې په چټکۍ ګامونه پورته کړل، کله چې شاهرخ میرزا له دنیا سترګې پټې کړې، له نېکه مرغه چې دا وخت دسلطان حسین بایقراپه نوم یوبل خدمتګارشخصیت په هرات کې راڅرګند شوچې نوم یې دشاهرخ میرزا په خوا پورې دافغانستان په معاصروتاریخونو کې په نیکۍ یادېږي اوپه ذهنونوخوږ لګېږي، نوموړي امیرشیرعلی نوایی خپل وزیروټاکه چې دواړه یوله بله ډېرد هېواد په آبادۍ کې زیارایستونکي وو، دوی دواړوعلمي اوادبي انجمنونه اوټولنې رامنځ ته کړې.

سلطان حسین بایقرانه یوازې د هرات د آبادۍ لپاره ګامونه پورته کړل بلکې د بلخ په خواجه خیران کې یې د حضرت علی کرم الله وجهه روضه او مزارهم جوړکړل، لنډه داچې هرات د تیموریانو په دوره کې د ختیځ د رنسانس په نامه هم یادېده. که بلخ ته د ام البلاد لقب ورکړ شوی و، نوهرات هم دا وخت د اژرنګ البلاد په نوم یادېده. ددې دورې مشهورشاعرمولانا عبد الرحمن جامي اومشهورنقاش کمال الدین بهزاد چې په هند او ایران کې یې هم هنرپلویان اوخوښوونکي درلودل د یادولو وړ دي.

د هرات مصلی چې د څو لرغونو بنستونولکه د ګوهرشاد مدرسه او د هغه د قبرګنبده د امیر شیرعلي نوایی مزار، دهرات ... ٦مخ

# ټکنالوژي یعنې څه؟

ادریس سنګر

دا یوه هوښیار وسیله ده چې د مصنوعي هوښ یا مصنوعي ذکاوت پر بنسټ کار کوي او د Alexa په نوم له غږیز مرسته کوونکي سره مجهزه ده. دا وسیله له کاروونکو سره د ورځني ژوند په مختلفو اړخونو کې مرسته کوي، لکه معلومات ترلاسه کول، د کور وسایل کنټرولول او ساتیري چمتو کول. Amazon Echo د ایمیزون شرکت له خوا په ۲۰۱۴ کال کې معرفي شو او د وخت په تېرېدو سره یې څو پرمختللي نسخې وړاندې شوې دي.

دا وسیله په ښکلي ډیزاین کې وړاندې کېږي چې د کور په هر ځای کې ځای پر ځای کیدای شي. Echo په ټوله نړۍ کې د ټکنالوژۍ د مینه والو له خوا په پراخه پیمانه کارول کیږي، ځکه چې دا نه یوازې یوه ساده وسیله ده، بلکې د کور یو بشپړ هوښیار مرکز جوړوي.

Amazon Echo د غږیز کنټرول پر بنسټ کار کوي، چې پکې د Alexa مرسته کوونکې د انسان غږ اوري، پوښتنې ته ځواب ورکوي او د امرونو پر بنسټ کارونه ترسره کوي. دا وسیله د وای فای یا بلوتوت په مرسته له نورو هوښیارو وسایلو سره نښلوي. د مثال په ډول، که تاسو غواړئ رڼا بنده یا چالانه کړئ، د تودوخې درجه تنظیم کړئ، یا حتی د خپل کور امنیت چک کړئ، Echo کولای شي



دا ټولې چارې ترسره کړي.

د دې وسیلې یوه غوره ځانګړنه داده چې کاروونکي کولی شي ورته طبیعي او غیر رسمي ډول خبرې وکړي. د دې لپاره چې وسیله فعاله شي، تاسو باید یوازې د «Alexa» کلمه ووایئ. وروسته له دې، تاسو کولای شئ پوښتنې وکړئ لکه د هوا حال، د ورځې خبرونه، د سندرو غږول، یا د خپل مهالویش په اړه معلومات ترلاسه کول.

Amazon Echo له مختلفو نسخو سره وړاندې شوی، لکه Echo Show ،Echo Dot، او Echo Studio، چې هره نسخه یې ځانګړې استعمالونه او بڼې لري. د مثال په ډول، Echo Dot یوه کوچنۍ او ارزانه نسخه ده چې په اسانه ډول ځای پر ځای کیدای شي. Echo Show په سکرین سره مجهز دی چې تاسو ته اجازه درکوي ویډیوګانې وګورئ، د امنیت کیمرې... ٦مخ

# د کلتور په وده کې د شاعرانو او لیکوالانو ونډه


نوري

په هغې ټولنه کې، چې شاعر ژوند کوي خپل خلک پیژني او په خپلو شعرونو کې د هغوی توصیف کوي. سربېره پر دې شاعر د ټولنې دودونه، رسمونه او نور فرهنګي ارزښتونه خلکو ته وریپیژني او د کلتور په وده کې ونډه لري. افغانستان ښه شاعران لري خلکو ته د هغوی وریپیژندل یو مثبت اقدام دی، چې پرته له دې کار څخه خپل کلتور ته وده نه شو ورکولی؛ نو ټول فرهنګیان او ادیبان دنده لري، چې دخپلې ټولنې د پوهانو او شاعرانو په هکله پلټنې او ګروېږنې وکړي، راټول شوي معلومات د ځوانانو او د علم د تږیو په واک کې ورکړي. پوهاند دوکتور احمد شاه زغم د حاجي راز محمد زوی په ۱۳۳۵ ل کال کې د کابل ولایت د پغمان ولسوالۍ په خالداري کلي کې نړۍ ته سترګې غړولې دي. هغه لومړنۍ زده کړې په ۱۳٤۲ ل کال کې د خواجه مسافر په لومړني ښوونځي کې پیل کړې، وروسته د خپلې ولسوالۍ د شهید عبدالرازق لیسې ته ولاړ او په ۱۳۵٦ کال کې له نوموړې لیسې فارغ شو. پوهاند زغم په ۱۳۵۷ ل کال د کابل پوهنتون د ادبیاتو او بشري علومو پوهنځي کې د لیسانس دورې زده کړې پیل کړې او په ۱۳٦۱ کال کې د نوموړي پوهنځي له پښتو څانګې څخه فارغ شو. هغه په ۱۳٦۲ کال کې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي د پښتو څانګې علمي غړی شو. پوهاند زغم په ۱۳٦۷ کال کې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي له پښتو څانګې څخه د ماسترۍ سند ترلاسه کړ. همدا راز یې په ۱۳۹٦ کال کې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي په پښتو څانګه کې د دکتورا زده کړې پای ته ورسولې. کله چې پوهاند زغم په ۱۳٦۱ ز کال کې د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي پښتو څانګه پای ته ورسوله؛ نو د همدغه پوهنځي په پښتو دیپارټمنټ کې یې د استاد په توګه په دنده پیل وکړ. هغه د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځي په پښتو څانګه کې نږدې ٤۰ کاله د استاد په توګه دنده ترسره کړه. پوهاند زغم د کابل پوهنتون یو له ډېرو مجربو استادانو څخه و. د کابل پوهنتون د پښتو ادبیاتو څانګې یو محصل چې له زغم سره یې پېژندګلوي لرله ویلي:« له دې سره سره چې استاد زغم په وروستیو کلونو کې د سرطان له ناروغۍ ځورېده، خو بیا یې هم په ډېره مینه او لېوالتیا د استادۍ دندې ته ادامه ورکوله». پوهاند دوکتور احمد شاه زغم د ۱٤۰۱ ل کال د سلواغې د ۳۰مې نېټې پر مازدیګر له دې نړۍ سترګې پټې کړې. د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو د پوهنځي دغه خدای بښلي مشر او زیارکښ استاد خپله کورنۍ، دوستان، استادان، ملګري او شاګردان د ویر پر ټغر کښېنول. اروا یې ښاده او جنت یې ځای شه.

پوهاند زغم د استادۍ تر څنګ لیکوال، څېړونکی، ژورنالیست، ژباړونکی او شاعر هم و. دلته یې د ځینو اثارو نوملړ در پېژنو:

معاصره لیکوالي، پښتو عرفاني او تصوفي ادبیات، پښتو فولکلوري ادبیات، د شعر ښکلاییزه برخه، پښتو چاربیته، په شپېتمه لسیزه کې د افغانستان پښتو شعر ته کتنه، رحمان بابا یو صوفي او عارف شاعر و. نو اړتیا ده، چې د خپلو شاعرانو او لیکوالو ډېر درناوی وکړو او د هغوی د اثارو په چاپ کې هېڅ راز هڅې ونه سپموو. همدغه لیکوالان او شاعران دي، چې د ټولنې کلتور او ادب ته وده ورکوي.

# فرهنگ شرایط اجتماعی و آمیزش با محیط را برای بشر تعریف می‌کند

احمد

فرهنگ شامل مجموعه یی ازدانش ها، باورها، هنرها، قوانین، آداب ورسوم اجتماعی وعادات افراد دریک جامعه، می شود.

ازاینرو باید گفت که انسان نه تنها یک موجود اجتماعی است، بلکه یک موجود فرهنگی هم می باشد، زیرا زندگی اجتماعی انسان به دلیل فرهنگ امکان پذیر شده است وانسان بدون همنوعان خود نمی تواند به زندگی خویش ادامه دهد و تمام دستاوردهای بشریت به دلیل فرهنگ و حس اجتماعی زیستن آدمی به وجود آمده است. فرهنگ درجوامع اسلامی وغیراسلامی هم، علم، دانش وبرخورد انسانی را برای آدمی فراهم می کند، که برای موجودیت فیزیکی و فکری انسان ضروری است. هرچند حیوانات به طور غریزی با زمین و طبیعت و محیط زیست رفتار می‌کنند، اما انسان به دلیل فکر، هوش و توانایی در یادگیری، خود را با طبیعت سازگار و حتی آن را دگرگون و در اختیار خویش قرار می دهد تا طبیعت با انسان سازگار شود، بناءً گفته می توانیم که فرهنگ چنین برابری و اصلاح را آسان و ممکن ساخته است در واقع فرهنگ مهارت و دانش را برای آدمی فراهم و آن را حفظ می‌کند و از طریق زبان از نسلی به نسل دیگر منتقل و به آن کمک می نماید.

فرهنگ شرایط اجتماعی وآمیزش با محیط را برای بشر نیز تعریف می‌کند. فرهنگ حتی برای آدمی شرایط را نیز تعیین می کند که چه بخورد و چه بنوشد و چه زمانی گریه کند و در چه زمانی بخندد و چه ایده یی را بپذیرد. فرهنگ نگرش به تمایل و احساسات آدمی را نیز در بر می گیرد. فرهنگ نگرش ما نسبت به دین، اخلاق، ازدواج، خانواده و ... را تعیین و مشخص می کند به طور خلاصه ارزشهای آدمی در جوامع مختلف تحت تاثیر فرهنگ است. اهداف وخواست های آدمی در میل به پیروزی، شناخت، آگاهی و احترام به بزرگان و وفاداری به وطن ووطن دوستی و... توسط فرهنگ مطرح می شود. به عبارت دیگر؛ آدمی در این مدلهایی که برشمردیم، اجتماعی می‌شود. سوالی که اینجا مطرح می‌شود این است که آیا یک سیاستمدار، یک مقام دولتی و یا یک بازرگان می‌تواند برای فرهنگ ملل مختلف در جهان، تصمیم بگیرد. افراد ممکن است روند فرهنگ را تغییر یا در آن دستکاری یا با آن مخالفت کنند، اما آنچه که مردم جهان به دنبال آن هستند عمدتاً توسط فرهنگ تعیین می شود، فرهنگی که برگرفته از ایدیولوژی پذیرفته شده آن جامعه باشد ویا هر گونه تغییر در فرهنگ که درمطابقت به ارزش های قبول شده آن جامعه نباشد ویا هم پذیرفته نشود، محکوم به شکست است، زیرا ما شاهد بودیم که در بیست سال پسین متجاوزان تلاش کردند تا فرهنگ خود را برما {افغانها } تحمیل کنند که خوشبختانه موفق نشدند.

ازاینروگفته می توانیم که فقط فرهنگ می تواند رفتار فرد و جامعه را هدایت کند و محدود نماید، اما ناگفته نماند، جامعه یی که از فرهنگ غنی برخوردار باشد فرهنگ های وارداتی محکوم به شکست است.

روی این اساس به صراحت اذعان می نماییم، درجامعه اسلامی رویاها، آرزوها و زندگی بهتر با فرهنگ اسلامی به پیش می‌رود، زیرا فرهنگ اسلامی تاثیر زیادی بر رشد شخصیت آدمی دارد. در نبود یک محیط فرهنگی هیچ کودکی نمی تواند از ویژگی‌های انسانی برخوردار شود. بناءً فرهنگ، انسان را برای زندگی اجتماعی آماده و اصول زندگی آدمی را نیز فراهم می کند. این فرهنگ است که فرصت ها را برای رشد شخصیت فراهم می کند. فرهنگ رفتارآدمی را تنظیم می کند و او را برای زندگی اجتماعی آماده می‌سازد.

بناءً باید گفت که فرهنگ اسلامی به آدمی می آموزد که چه نوع غذایی را باید برای بقا و ادامه حیات خود در نظر بگیرد و چگونه خود را پوشش دهد و چگونه باید با مردم صحبت کند و چگونه با دیگران همکاری و یاری نماید. باتاسف در جوامعی که فرهنگ های بیرونی ازهر راه ممکن بر آنان تحمیل می گردد، وضعیت آنان پیچیده وبه نقطه جوش می رسد، تخلف، دروغ، دزدی، ریا، تزویر، تهمت و... آشکارتر می‌شود. بنابراین فرهنگ نه تنها برای انسان بلکه برای جامعه اهمیت بسزایی دارد، زیرا فرهنگ هدایت کننده ارزش‌ها و آرمان‌های آدمی است. فرهنگ با تنظیم رفتار مردم زندگی را حفظ و سامان می دهد. فرهنگ افراد و جامعه را مسئولیت پذیر تربیت می کند و انگاه است که مسئولیت معنا پیدا می نماید.

وقتی فرهنگ دیدگاه و نگرش انسانی را به جامعه ارائه می کند و مجموعه ای از قوانین برای همکاری را فراهم می‌نماید، واضح می گردد که فرد هم به فکر خود و هم به فکر جامعه خویش است. چرا که فرهنگ به او آموخته است که چگونه در جامعه با افراد وخانواده خود برخورد وامیزش کند.

# لوېدلي ستوري

**اووه‌پنځوسم ستوری** — **امین وردک**

نوم او تخلص: نجیب الله (انتظار)
د پلار نوم: شاه محمد
ځای: افغانستان، وردګ، سیدآباد، تنګي درۀ، لاچخېل.
عمر: (۳۰) کاله
مدني حالت: متأهل
یتیمان: د یوۀ کال ناوکۍ ترځنګ یې (د سلما پۀ نوم) یوه لورکۍ هم پاتې شوې چې د دۀ له شهادت څخه وروسته پیدا ده.
زده کړې: تر درېیم ټولګي ښوونځی او پۀ مدرسه کې ابتدائیه دیني درسونه.
د شهادت نېټه:(۱۳۹۶/۱۲/۱۶) هجري لمریز کال، د څلورنۍ (چارشنبې) ورځ، ماښام مهال (۷:۱۷) اووه بجې او اوولس دقیقې.
د شهادت لامل: غربي اشغالګرو ته د مجاهدینو له خوا ایښوول شوی ماین.
د شهادت ځای: د ښادیبوچ او رحمزي خېلو (رنځي خېلو) ترمنځ پراتۀ غرۀ (سپینکي) پۀ لوېدیځه خوا کې؛ سرۀ رېګۀ ته نږدې د هغۀ بندکي جنوب لوري ته چې د وردګو امین خېلو او د لوګر توریخېلو ته تللې اوبۀ سره بېلوي.
مزار: د خپل کلي پۀ هدیره کې.
کیسه کوونکې: د شهید غمجنه مورکۍ.
راسره مل کسان: مولوي محمد سرور (سروري) او مولوي واحدالله.

مکمله کیسه: ورورە کۀ رښتیا درته ووایمه، نو همدغه شهید زوی مې جهاد کولو خو له پلار څخه یې پټ؛ شهید زوی مې پر مور دواړو (مور او پلار) دومره ګران و چې کله به مو ماسخوتن ډوډۍ وخوړه نو د دۀ کورواله به لاړه خپلې کوټې ته یې، مګر دی به تر ډېره له مور سره ناست ؤ، خو کله به چې خوب زور پرې وکړ، نو یوې او بلې خوا ته بۀ یې خوار وکتل چې ګونډې مور اجازه ورکړو؟ مګر نۀ بۀ زما زړۀ پرې کېدلو چې رانه لاړ شي او نۀ یې د پلار، تر دې چې ناوخته بۀ یې ښښنه وغوښته او ولاړ بۀ؛ چې کله بۀ جنګ، پیرې او یا پۀ کوم بل جهادي کار پسې تللو، نو پټ بۀ یې ماته ویل خو پلار یې نۀ خبرولو، مګر ما بۀ ورته ویل چې زویه پر الله دې سپارم؛ اوس فخر کوم او الحمدلله! ځکه چې پر چا مې سپارلی ؤ د همغۀ خواته ورغی؛ د کیسې پۀ دغې نکته کې د شهید وړکۍ یتیمه هم راغله او له مور دواړو سره یې پۀ لاسو سترې مشي وکړله، ما خپل څنګ ته کېنوله او ورته ومې ویل چې بي بي جانې نوم دې څۀ دی؟ دې راته وویل: سلما، ما ویل د چا لور یې؟ غږ یې نۀ کولو، تر دې چې څو واره مې ورته وویل خو دا چوپ وه، بیا یې پلندر (د مور نوي خاوند یې) راته وویل چې جالبۀ ده! تېره ورځ چا پوښتنه ترې وکړه چې د چا لور یې؟ دې ورته وویل چې د نجیب الله، بیا یې ترې وپوښتل چې خی پلار دې چېرې دی؟ دې ورته وویل چې هغه خو پۀ قبر کې دی! اوف خدایه! د دغې خبرې په اورېدو سره چې کله ما د معصومې یتیمې سترګو ته وکتل نو خپل احساسات مې قابو نشوی کړی! خدایه پاکه ته خو د ظالمانو کورونه همداسې خوار کړې، لکه د مظلومانو یې چې خوار کړي دي، له مولوي واحدالله نه مې پوښتنه وکړه چې د شهید د کونډې سرنوشت څرنګه شو؟ دۀ راته وویل چې د سلما مور خو یې ماته نکاح کړه؛ مولوي صاحب ډېر حیاناک ځوان ؤ، پوهېدم چې د لومړنۍ پوښتنې ځواب لا ورته سخت غوندې ؤ، نو دویمې ته به یې څۀ حال وي! خو ما له خپل جرئت څخه کار واخیست او ورته ومې ویل چې آیا تاسو دواړو پۀ خوښه نکاح سره تړلې ده؟ ده وویل چې هو بالکل؛ مور دواړه راضي وو او راضي یو الحمدلله! ما ویل ځینې خلک له داسې پوښتنو څخه بده وړي؟ دۀ وویل چې هو، رښتیا هم ځینې چې بې علمه وي او یا هم سطحي مطالعات ولري، هغوی داسې پوښتنې او ځوابونه یې عیب ګڼي، خو مور دواړه له خپل ژوند څخه بالکل راضي یو الحمدلله.

ـ په راتلونکي کې د بل وادۀ یا بلې نکاح تصمیم لرې کۀ نه؟

ـ نه؛ مور دواړه بالکل یو له بل سره خوشاله یو او د دویم وادۀ لپاره نۀ تصمیم لرم او نۀ هم اړتیا شته ورته.

د یادونې وړ ده چې دوی درې سره (نجیب الله انتظار، نجیب الله قیس او عصمت الله حجاز) تکړه مجاهدین او خوارۀ ملګري هم وو ځکه خو بۀ زیاتره وخت پۀ جهاد او سنګر، پۀ سفر او حضر کې یوځای ګرځېدل، دا دی شهادت یې هم یوځای شو.

# د ژوند مفهوم د انسان هدف

**ځواک یوسفزی**

د ژوند مفهوم او د انسان هدف یوه له هغو پوښتنو څخه ده چې انسانان یې د ژوند په اوږده موده کې په مختلفو لارو څېړي. ځینې خلک په دې باور دي چې د ژوند هدف یوازې خوشحالي او ارامي ده، خو همدا خلک چې کله د معاش د میاشتې اخري ورځې راشي نو خوشحالي یې د خپلو پورونو د ادا کولو په فکر له لاسه لاړه او له ورځنیو ستونزو او فشارونو سره مخ شي، چې بیا خوشحالي او ارامي ستونزمنه ښکاري. ځینې نور بیا فکر کوي چې ژوند باید د لوړو اهدافو لپاره وي، مګر چې د ترافیکو په ګڼو ګوڼو کې ګیر شي، ټول هدفونه په سټریا او غوسه بدل شي. نور بیا فکر کوي چې د ژوند هدف باید د لوړو معنوي ارزښتونو ترلاسه کول او د نورو خلکو خدمت کول وي، خو په عمل کې ډېر خلک یوازې د خپلو ورځنیو اړتیاوو د پوره کولو لپاره کار کوي، لکه د کار او د کور د اړتیاوو تنظیمول. د ځینو خلکو لپاره، د ژوند حقیقي هدف معنوي سکون او روحاني پرمختګ دی، خو کله چې له ټولنیزو، اقتصادي فشارونو او نورو ورځنیو مشکلاتو سره مخ شي، د دې هدف موندل یو څه ستونزمن او پیچلي ښکاري. انسان باید په دې پوه شي چې د ژوند هدف یوازې په مادي خوشحالۍ کې نه دی، بلکې له هرې شیبې او کوچنۍ هڅې خوند اخیستل او خپل ژوند د معقولو اهدافو لپاره پرمخ وړل دي. په دې لیکنه کې به هڅه وکړو چې د ژوند حقیقي مفهوم واضح کړو.

د انسان هدف یوازې د مادي لذتونو په لټه کې نه دی، بلکې د هغه معنوي ارزښتونو، ټولنیزې همغږۍ، له نورو سره مرستې او شخصي پرمختګ هم د هغه په هدف کې ځای لري. د انسان هدف د ژوند د بشپړتیا لپاره درې اصلي برخې لري: روحاني، ټولنیز او شخصي اهداف. د دې برخو په تکامل کې انسان ته یوه د مثبت پرمختګ لاره ورکول کېږي. په روحاني برخه کې د خالق پېژندنه، عبادت او د معنوي سکون ترلاسه کول د انسان لپاره یوه تلپاتې ارامتیا او د پوهې ژورې راوړي، چې د نړۍ په اړه د هغه درک زیاتوي. په ټولنیزه برخه کې، د انسان هدف باید د ټولنې په پرمختګ کې همکارۍ او خدمت کولو ته هم اړوند وي، چې په دې سره نه یوازې د فرد د ژوند لورې څرګندوي، بلکې د ټولنې د عمومي رفاه، سولې او پرمختګ لپاره هم یو ګټور پیغام وړاندې کوي. د شخصي اهدافو برخه د انسان د ځان پېژندنې او پر ځان باور ته اړتیا لري، ترڅو هغه پوه شي چې کومه لاره د هغه له وړتیاوو او هدفونو سره سمه ده.

که انسان په دې درې اړخونو کې متوازن پرمختګ وکړي، نو هغه کولی شي خپل ژوند نه یوازې د ځان لپاره بلکې د ټولنې د رفاه لپاره هم ګټور او اغېزمن کړي. د دې لپاره چې انسان خپل هدفونه په سمه توګه وټاکي او د هغه لپاره ګټورې لارې چارې غوره کړي، لومړی ګام د ځان پېژندنه ده. انسان باید خپلې وړتیاوې، علاقه‌مندي، کمزورۍ او ځواکونه وپېژني او د هغو پر بنسټ خپلې غوښتنې او اهداف تنظیم کړي. دا پروسه انسان ته دا توان ورکوي چې خپل هدفونه داسې وټاکي چې هغه نه یوازې د خپل ځان بلکې د ټولنې لپاره هم ګټور او مفید وي. د دې ترڅنګ، د ارزښتونو ټاکنه د انسان ژوند ته روښانه لاره ورکوي او هغه ته اجازه ورکوي چې د ټولنې اخلاقي ارزښتونه په پام کې ونیسي او د هغوی پر بنسټ خپل ژوند تنظیم کړي. بیا هم، د علم پراختیا او پوهه د انسان په ژوند کې بنسټیز اهمیت لري، ځکه چې پوهه د فرد د اهدافو د ترلاسه کولو لپاره مهمه وسیله ده. پوهه انسان ته دا وړتیا ورکوي چې د خپلې ټولنې اړتیاوې او غوښتنې درک کړي او خپل اهداف د هغو اړتیاوو مطابق وټاکي. د علم پراختیا نه یوازې انسان ته د فکري پرمختګ فرصت ورکوي، بلکې هغه ته د ژوند په مختلفو برخو کې ځوابونه او د حل لارې هم وړاندې کوي. د دې ترڅنګ، که انسان د خپل ژوند لپاره روښانه هدف ونه ټاکي، نو هغه به د بې هدفۍ او بې لارۍ په لور روان شي، چې له دې سره به هغه د معنوي تشې، رواني ستونزو او بې ارزښته ژوند سره مخ شي. بې هدفه ژوند نه یوازې د فرد لپاره بلکې د ټولنې لپاره هم بې ګټې او بې معنا وي. له همدې امله، د هدف لرونکی ژوند انسان ته یو مشخص لارښود ورکوي، چېرې چې هغه کولی شي خپلې هڅې په ګټورو چارو کې متمرکزې کړي، د خپل ځان لپاره خوشالي ترلاسه کړي او د ټولنې په پرمختګ کې هم مثبت رول ولوبوي. د انسان اصلي هدف باید د معنوي، ټولنیزو او شخصي اړتیاوو په برابرولو کې وي، نه یوازې د مادي لذتونو تر لاسه کولو کې. که انسان د خپل ژوند لپاره روښانه او لوړ اهداف وټاکي، نو هغه به د خپل ژوند معنا ومومي او په ټولنه کې به د ګټور او رغوونکي رول لوبولو توان ولري.

د ژوند هره لحظه باید په مثبتو هڅو او ګټورو کړنو کې تېره شي ترڅو د ځان او ټولنې لپاره د یوې روښانه، باثباته او خوشحاله راتلونکې لاره پرانیزي. د ژوند حقیقي مفهوم یوازې په دې نه دی چې انسان د خپلې خوښې لذتونه او خوشحالۍ ترلاسه کړي، بلکې د ژوند اصلي هدف هغه وخت پیدا کېږي چې انسان خپلو روحاني، ټولنیزو او شخصي اهدافو ته رسېږي، چې په دې سره د هغه ژوند نه یوازې معنوي ارزښت پیدا کوي، بلکې د ټولنې د پرمختګ، همغږۍ او خوښۍ لپاره هم پر یوې ګټورې وسیلې بدلېږي.

د انسان هدف د هغه د ژوند په معنا او ارزښت باندې ژوره اغیزه لري. له دې امله، د انسان د ژوند او هدفونو موندلو لپاره اړینه ده چې هغه په خپل ژوند کې داسې لارښود ولري چې هغه ته د حقیقت او ځان پېژندنې په لور رهنمایي وکړي. دا لارښود باید انسان ته له ټولنې سره د اړیکو جوړولو، له نورو سره د همکارۍ کولو او د خپل ځان د اړتیاوو او وړتیاوو د پېژندلو په برخه کې مرسته وکړي. په دې توګه، انسان باید د خپل ژوند هدفونه داسې وټاکي چې نه یوازې د هغه د شخصي ګټو د پوره کولو لپاره وي، بلکې د هغه د ټولنې لپاره هم ګټور واقع شي. په دې توګه، د انسان د ژوند لپاره بېلابېل اړخونه لکه دیني باورونه، فلسفي نظرونه او ټولنیز ارزښتونه په یوې بشپړې او هوسا کړنلارې کې یوځای کېږي. که انسان له دې ټولو اړخونو څخه په سمه توګه استفاده وکړي او د خپلو هدفونو په ترلاسه کولو کې پر صبر، ارادې او پوهې تمرکز وکړي، نو هغه به وکولای شي خپل ژوند نه یوازې د خپلې شخصي خوشالۍ لپاره، بلکې د ټولنې د پرمختګ او نېکمرغۍ لپاره هم ارزښتمن کړي. د انسان اصلي هدف د معنوي سکون، د ژوند د ارزښتونو درک، د انسانیت خدمت او د ځان د ودې او پرمختګ لپاره د هڅو کولو کې دی. که انسان د دې ټولو اړخونو په پام کې نیولو سره خپلې هڅې وکړي، نو هغه کولی شي نه یوازې د خپل ژوند هدف ترلاسه کړي، بلکې د ټولنې د پیاوړتیا او پرمختګ لپاره هم اغېزمنه برخه ولوبوي. د یو انسان ژوند باید نه یوازې په مادي لذتونو او شخصي کامیابیو کې محدود شي، بلکې باید د معنوي سکون، ټولنیزې رفاه او د بشریت د پرمختګ لپاره هم یوه اغېزمنه برخه ولري. د دې لپاره چې انسان خپل ژوند کې موخه ولري، هغه باید د ځان پېژندنې، ټولنیزو اړیکو، له نورو سره د مرستې، د علم د پراختیا او د خپلې ټولنې په هوساینې کې ګډون کولو باندې تمرکز وکړي.

په پای کې د ژوند مفهوم او د انسان هدف هغه پوښتنې دي چې انسانان یې په اوږده موده کې څېړي. ځینې خلک فکر کوي چې د ژوند هدف خوشحالي او ارامي ده، خو کله چې د ژوند ستونزې او فشارونه زیات شي، خوشحالي او ارامي ستونزمنه ښکاري. نور فکر کوي چې د ژوند هدف معنوي سکون او لوړو ارزښتونو ته رسېدل دي، خو کله چې له ټولنیزو او اقتصادي فشارونو سره مخ شي، دا هدف موندل هم ستونزمن کېږي. د انسان هدف یوازې د مادي لذتونو په لټه کې نه دی، بلکې د معنوي سکون، ټولنیز پرمختګ او شخصي اهدافو تر لاسه کولو کې دی. د انسان هدف د روحاني، ټولنیزو او شخصي برخو تکامل ته اړتیا لري، چې د دې لپاره باید د ځان پېژندنه، د علم پراختیا او د ټولنې خدمت ته پام وشي. د ژوند حقیقي هدف هغه وخت موندل کېږي چې انسان خپل هدفونه په سمه توګه وټاکي او د هغو لپاره ګټورې لارې چارې غوره کړي، ترڅو نه یوازې د خپل ځان، بلکې د ټولنې لپاره هم ګټور وي. د ژوند هره لحظه باید په مثبتو هڅو او ګټورو کړنو کې تېره شي، ترڅو د ځان او ټولنې لپاره یوه روښانه او خوشحاله راتلونکې لاره پرانیزي.

# ټولو راپورې وخندل!

**روان**

په حکومتي چوکاټ کې زما د دندې دڅلورم کال خبره او خاطره ده، داسې چې د وزارت د اړوندو چارواکو له خوا، د هغوی د لورینو او یا اعتماد پر اساس، د څلورو نورو مامورینو په ډله کې زما نوم هم د خریدارۍ هیئت د یو غړي په توګه په اصطلاح، قید قلم شوی و.

زه هغه وخت خبر شوم چې د وزارت یو مامور راته په دنده کې د بلې دندې، په اړه مبارکي راکړه او ویې ویل: مبارک شه مبارک، مګر شریني به پکې وي، ښه ډېره شریني، د خریدارۍ په هیئت کې نیول شوی یې، څه معمولي خبره خو نه ده، ما پخپله په لېست کې ستا نوم ولید ؟؟؟!!!

حیران شوم، څنګه کېدای شي چې د یو مهم کار لپاره دې د حکومتي چارواکو له خوا وګومارل شم او زه هېڅ خبر نه اوسم؟

پورتنۍ پوښتنه ځکه راته پیدا شوه، چې زه یو مطبوعاتي مامور وم او په اداري او غیر مطبوعاتي چارو کې مې هېڅ مهارت نه درلود، نو په دغه حساب په غیر مطبوعاتي چارو کې بوختیا را ته هم غیرمسلکي او هم ستونزمنه ده، نو څوک چې د یو کار په اړه دغسې یو دریځ او وضعیت ولري او له دغسې واقعیت سره بیا هم هلته ورځي، دا یو نامناسب کار دی او هرو مرو به له لویو ستونزو سره مخ کېږي.

لنډه دا چې د معلوماتو د تر لاسه کولو لپاره د وزارت اداري ریاست ته ورغلم او په دې اړه مې خپله اندېښنه ورته څرګنده کړه او ورته ومې ویل: زه یو مطبوعاتي سړی یم او تاسو دَ خریدارۍ هیئت په ډله کې نیولي یم، په داسې حال کې چې زه په دې برخه کې هېڅ تجربه نه لرم، په خپل دفتر کې د یوې شعبې مدیریت هم را په غاړې دی، د څلورو پنځو تنو پر کار هم نظارت کوم او په خریدارۍ کې پنځه فیصده هم نه پوهېږم، نو دا به څنګه ممکنه شي چې زه په دغې پروسه کې اغېزمن کار وکړای شم؟؟؟

اداري رئیس راته وویل:

وروره! ته پوهېږې چې د خریدارۍ په هیئت کې ډېرې ستونزې وي او ډېرې هڅې مو وکړې چې د غلاوو او د دولتي او بیت المال د اموالو د لوټ کېدلو مخنیوي وکړو. د دغه کار لپاره مو دا ځل نوي کسان ټاکلي او ستاسو نوم شخصاً ما ورکړی دی، ځکه چې زه تا پېژنم او هیله ده چې ستاسو په مرسته به ډېر اصلاحات راولړ.

ما ورته وویل: ستاسو له پېرزوینو یوه نړۍ مننه، خو زه هم د نورو کارونو له امله دا کار نشم کولای، ځکه زه د دغه نوی هیئت په دغو څو تنو نویو ټاکل شویو کسانو کې هم ستونزې وینم او چندان په زړه پاک نه راته ښکاري او د هماغو پخوانیو کسانو دوستان دي او ګومان نه کوم چې دا ځل هم د خیانتونو مخنیوی وکولای شئ.

رئیس وویل: ته تکړه شه، زه دې هم کلک ملاتړ کوم، که تر پایه هم پاتې نه شوې، یو څه موده خو اوسه چې دا نوی هیئت څنګه دی او څه کوي؟

ما ورته وویل: خیر دی ستا د ډېر ټینګار له امله به یوه دوې ورځې ورسره لاړ شم. لنډه دا چې په لومړۍ ورځ مې د هغوی د غلا او شوکو مشهود اسناد ورته راوړل، داسې چې هغوی له یو دکان څخه د وزارت د یو شمیر ضروري توکو د پېرودلو درې ډوله نرخونه، په درې ډوله ټاپو او ورقو کې واخیستل، تر څو چارواکو ته وښیي چې ګواکې دا درې ورقې او درې ډوله نرخونه یې له درېوو دکانونو اخیستي دي؟! په داسې حال کې چې هغه دکاندار زما په حضور کې ورته وویل: د دغو نرخونو په هره پاڼه کې تاسو ته تر لسو، شلو او دېرشو فیصدو ونډ درکوم !؟؟؟؟

باور وکړئ، هغه ورځ ډېر خفه شوم چې ولې دغو غلو او شوکمارو مامورینو او هغه دکاندار پر ما هم د غله او شوکمار ګومان وکړ؟؟

لنډه دا چې مازدیګر چې دفتر ته ورغلم، د هغو غلو او شوکو راپور مې اداري رئیس ته ورکړ او دَ هغه دکان ادرس او د دکاندار نوم مې هم په کاغذ کې ورته ولیکه او ورته ومې ویل: زه نور نه راځم، همدا ثبوتونه بس دي. که څه کولای شې، ښه تر ښه او که یې نه شې کولای، هسې ماته کار مه ګوره، زه لاړم، سبا نه راځم او زما پر ځای بل څوک ور ولېږه.

په سبا خپل دفتر ته لاړم او د ورځپاڼې مسئول مدیر ته مې د دغه واقعیت حکایت وکړ او ورته ومې ویل: اداري رئیس ته زنګ ووهه او ورته ووایه چې ستاسو د خریدارۍ د هیئت هغه غړي ته چې له موږ سره په مطبوعاتو کې کار کوي، ناروغي پېښه شوه او په وزیر اکبرخان روغتون کې بستر شو او هلته نه شي درتلای او پر ځای یې بل څوک وټاکئ. په دې ترتیب زه څو ورځې دفتر ته هم لانه ړم او کور کې کیناستم او ځان مې ګوښه کړ.

کله چې دغه کیسه خپره شوه، ټول مامورین زما پر دغه موقف او عمل هک پک شول او په ټوله حیرانتیا یې راته وویل:

انډېواله! خلک رشوتونه ورکوي، تر څو د خریدارۍ د هیئت غړي شي او د هغوی په اصطلاح د « پیدا او پناه » چانس ورته مساعد شي او تا ته چې مفت او جفت د هغوی له خوا چانس مساعد شوی و، هېڅ ګټه دې ترې وا نه خیستله او ځان دې پر شا او ګوښه کړ او په ګډه خندا یې راته وویل: ته څومره ساده یې؟؟!! او وروستۍ جمله دا چې ټولو په ګډه راپورې وخندل ؟؟!!

## د داوطلبی خبرتیا

د دواطلبۍ گڼه:خ.س.چ.ا.ش/۱۴۰۳/ پ.ک.د/توکي-۱۱بیاځلی

د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، ټولو لیوالو داوطلبانو ته په خورا درنښت بلنه ورکوي تر څو د دې شرکت د اړتیا وړ د خوندی سندونو د چاپ لپاره ۳۰ ټنه امنیتي کاغذ پروژې تدارکاتي پروسه کې چې د داوطلبۍ اسنادونه یې دوهم ځل اعلان ته سپارل شوی گډون وکړي، خپل سر ترلي/ بند آفرونه د شرطپاڼې د شرایطو، د تدارکاتو قانون او طرزالعمل سره برابر د ۱۴۰۳ کال د حوت میاشتې تر (۹ مې) نېټې، د سهار تر ۱۰:۰۰ بجو پورې، د کابل ښاروالۍ اومې ناحیې اړوند، چهلستون عموي سړک د جنگلک پخوانۍ فابریکې داخل کې د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، دوهم پوړ کې د تدارکاتو آمریت ته تسلیم کړي. هېره د نه وي چې نا وخته او د بریښنالیک له لارې رسېدلي آفرونه نه منل کیږي.
همدارنگه د یادونې وړ ده چې داوطلبان کولای شي؛ شرطپاڼه د (NDA) یا د معلوماتو د نه افشاء ترون تر لاسلیک وروسته د مموری فلش یاهم بریښنالیک له لارې د تدارکاتو آمریت څخه تر لاسه کړي.
داوطلبان مکلف دي؛ د آفر تضمین د شرطپاڼې د شرایطو سره سم، د (۲۵۰،۰۰۰) افغانیو په ارزښت، په بانکي او یا هم نغدی بڼه د خپل آفر سره یوځای وړاندې کړي. د یادې پروژې د آفر پرانستې غونډه د ۱۴۰۳ کال د حوت میاشتې په (۹ مه) نېټه، د سهار په ۱۰:۰۰ بجو د کابل ښاروالۍ د اوومې ناحیې اړوند، چهلستون عمومي سړک د جنگلک پخوانۍ فابریکې داخل کې د خوندي سندونو د چاپ امارتي شرکت، د غونډو په تالار کې نیول کیږي.

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ایروبل گمرکی به اسم کلینیک علی دار خان مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۱۲۴

### د جواز ورکولو اعلان

د عدلیې وزارت د انسجام لوی ریاست د ټولنو چارو ریاست په پام کې لري چې د ټولنې دلانښه تنظیم په موخه د اتحادیو او خیریه بنسټونو له کړنلارې سره سم، بنیاد خیریه خیر الامة ته د فعالیت جواز ورکړي
دیاد جواز اخیستلو لپاره محمد د عبدالشکور زوی ، د نیمروز ولایت چخانسور ولسوالی اصلی او د کابل ولایت ۱۳ ناحیه فعلی اوسیدونکی د ریس ، او محمد شریف د ولی محمد خان زوی ، د نیمروز ولایت مرکز ولسوالی اصلی او د کابل ولایت ۱۳ ناحیې فعلی اوسیدونکی د مرستیال په توگه عارض شوی که پر یادو اشخاصو دصنف اړوند کوم څوک نیوکه لری د اعلان له نیتی څخه تر لسو ورځو پوری د عدلیی وزارت یاد ریاست ته خپل شکایت له اسنادو او شواهد و سره یوځای په لیکلی بڼه وړاندی کړی له یادی نیټې وروسته به نوموړو اشخاصوته د فعالیت جواز صادریږی چی دجواز د صدور له نیټې څخه د جوار ترنهایی نیتی پوری په یادو اشخاصو څوک د شکایت حق نه لری.۹۱۳۷

### اطلاعیه به اجاره دهی

وزارت زراعت آبیاری و مالداری در سال ۱۴۰۳ یک باب تعمیر ریاست زراعت آبیاری و مالداری ولایت بغلان را به اجاره میدهد. اشخاص انفرادی و موسسات که خواهش اجاره آن را داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی ۱۴۰۳/۱۱/۲۶ با تذکره تابعیت و مبلغ یک لک افغانی حق الاشتراک به ریاست اداری وزارت زارعت آبیاری و مالداری واقع چهار راهی کارته سخی مراجعه نمایند.۹۱۱۲

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت حسیب صدیقی لمتید یک عراده موتر پلیت ۷۸۵۸۹-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای نجم الدین فرزند نصر الدین بفروش رسانیده است.
بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۱۳۰

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم نور الله فرزند محمد اکبر یک عراده موتر پلیت ۱۹۲۹۵-۶ ش کابل نوع تیوتا لکسس خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای محمد بشیر فرزند محمد کبیر بفروش رسانیده است.
بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۱۱۴

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوین احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۵۲۷۹۶-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای ویس الله فرزند عبدالبشیر بفروش رسانیده است.
بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۱۱۸

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت عبدالله امین لمتید یک عراده موتر پلیت ۸۹۲۱۴-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای شیراز فرزند شیرزی بفروش رسانیده است.
بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۱۴۲

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۴۴۹۲/۱۰۸۸ مورخ ۱۳۸۸/۱۰/۹ مرتبه محکمه وثایق حوزه دوم شهر کابل جایداد واقع شهر نو ناحیه چهارم کابل به اسم محمد صدیق فرزند محمد اسحق ولدیت محمد علی مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۱۲۷

### اطلاعیه فروش امتیاز دواخانه

محترم داد خان طوطاخیل فرزند میاخان ولدیت میرعلم خان دارنده تذکره نمبر ( ۱۴۰۲-۰۷۰۲-۰۲۷۱۴ ) مسکونه اصلی ولایت پکتیا مالک امتیاز دواخانه نسیم طوطاخیل واقع ولسوالی سید کرم ولایت پکتیا طی درخواستی به مقام محترم معینیت غذا و ادویه عارض و خواهان فروش امتیاز دواخانه خویش بالای محترم سیف الرحمن فرزند عبدالرشید ولدیت ارسلا خان دارنده تذکره شماره ( ۱۱۲۴۶۰ ) مسکونه اصلی ولایت پکتیا گردیده است .
اشخاص موسسات ودوایر دولتی در مورد ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۱۰ روز به آدرس اداره ملی غذا وادویه افغانستان واقع ده افغانان تعمیر قبلی وزارت اطلاعات و فرهنگ مراجعه نمایند. ۹۰۵۵

### اطلاعیه به کرایه دهی

شرکت فارمسی ابن سینا تعمیر دواخانه سیزدهم خویش را واقع قلعه فتح الله جوار لیسه زرغونه ناحیه دهم شهر کابل موقعیت دارد.
در روشنی قوانین نافذه کشور طور مزایده به کرایه میدهد.چون قبلا مجلس آفرگشایی مبلغ ۲۵۰۰۰ افغانی ماهوار مسول کیلینیک دندان احمد طاهر ناصر ارایه نموده است.
اشخاص و افراد حکمی و حقیقی که خواهش ارایه نرخ بلند تر از قیمت متذکره را داشته باشند ، شرطنامه متذکره را از مدیریت ملکیت های مدیریت عمومی خدمات شرکت امارتی فارمسی ابن سینا در بدل ۱۰۰۰ افغانی پول غیر قابل بازگشت دریافت نموده جلسه آفرگشایی ۷ یوم بعد از نشر اخبار بروز معیینه ساعت ۱۰:۰۰ بجه قبل از ظهر در مقر شرکت امارتی فارمسی ابن سینا برگزار میگردد. تضمین طبق مقررات اخذ میگردد.۹۰۹۸

## د اسلامي نړۍ اقتصادي ...

د احتکار اغېزې به کمې شي. لله الحمد، اسلامي امارت دې برخې ته زیات متوجه دی او په روانه اوونۍ کې یې د افغانیو ارزښت ښه وساته، چې دا د اقتصادي ثبات لپاره یو مهم گام دی. همداراز، پر ډالرو باید تکیه کمه شي او اسلامي هېوادونه باید د خپلو ملي اسعارو پر بنسټ تجارت ته وده ورکړي.
د اسلامي نړۍ اقتصادي راتلونکې د مسلمانانو پر هوښیارتیا، اقتصادي پلان جوړونې او د اسلامي اصولو پر تطبیق ولاړه ده. که اسلامي هېوادونه د سودي نظام بدیلونه رامنځته کړي، د خپلو زېرمو مدیریت پخپله په لاس کې واخلي او خپل مالي سیاستونه د لویدیځوالو له اغېزو څخه خلاص کړي، نو نه یوازې اقتصادي خپلواکي به ترلاسه کړي، بلکې د ټولې اسلامي نړۍ لپاره به یو پرمختللی، باثباته او عادلانه اقتصادي نظام رامنځته کړي.

## په افغانستان کې ...

پسولونه جوړول، خو ددوی پسولونه به ددوی له مالي استعداد سره سم له سپینو زرو گلټو، ژړو، مسو، مشکنو ،هډوکو او نورو ډول ، ډول فلزاتو، څخه جوړېدل اود قیمتي غمیو پرځای به کونجکې، مرۍ او نورکم ارزښته شیان پکې استعمالېدل.
نو ویلای شو چې په دې ترتیب له هماغې زمانې څخه د افغانستان ټولو پیغلوټو اومیرمنو له زرگونو کلونو د مخه هم له پسلونوسره مینه درلوده اواستفاده یې ترې کړې، له بېلا بېلو فلزاتواو غمیو یې کاراخیستی او د ځان لپاره یې لښتۍ ،غاړکۍ ، باهوگان ، چمکلی، گوتیې امیلونه، پاولي اونورد خوښې وړ زیورات جوړ کړي او استعمال کړي او د ودونو اوخوښیو په ورځو کې یې ځان پرې ښکلی او د ښکلا شوق یې پرې خړوب کړی دی، دغه ټکي ته هم باید اشاره وکړو چې راز راز پسولونه او زیورات اوس هم د افغانستان په گوټ گوټ کې دود دي او د ماهرو زرگرانو له خوا جوړېږي اواستفاده ترې کېږي، موږ باید پرخپلو موزیمو سربېره د وگړ پوهنې په ننداړتونونو کې دا پسولونه د ننداړې لپاره کېږدو، څوموهېوادوال د پخوانیو انسانانوله استعدادونو اوهنري ذوقونوسره پېژندگلوي پیدا کړي، ځکه پخواني انسانان هم له داسې لوړهنري خلاقیت څخه برخمن وو چې آن د نن ورځې د انسانانو له توانه یې هنري تقلید لوړدی، نولازمه ده چې زموږ د زرگرۍ مسلکي ماهرین او نور آزاد څېړونکي د پخوانیو زیوراتو پر مختلفو هنري اړخونو، دودونو انگیرنو او تجربوي بهیر باندې څېړنې او گروېږنې وکړي څود خپل هنري خلاقیت له مخې د افغانستان د هنرپه تاریخ کې یو بل باب پرانیزي، دا ځکه چې همدا اوس د افغانستان په هره برخه کې د قیمتي ډبرو او فلزاتوداسې گڼ کانونه موجود دي چې په آسانۍ سره هرڅه ترلاسه کېدای شي او کارپرې کېدای شي، هغه څه چې د پخوانیو انسانانو له شهکارونو په لاس راغلي دا ترې څرگندېږي چې هغوی په لوړ زحمت او مشقت د قیمتي ډبرو کانونه او درنگونه وپېژندل را ویې ایستل اود ښکلیو پسولونو د جوړولوپه تمه یې په کار واچول څو د زماني په تېرېدو سره د پرلپسې تجربو په ترڅ کې ماهر او پیاوړي زرگران را پیدا شول، پاچاهانو ته یې ښکلي تاجونه جوړ کړل، شاهزاد گیو او د شاهي کورنۍ د باندې نورو پېغلو او میرمنو ته یې راز راز پسولونه جوړکړل ،څو دا لړۍ تر نن پورې را وغځېده خو له ټولو مهمه خبره داده چې لومړنیو انسانانوپه طلا او نورو غمیوکې د ارزښت رازونه څنگه کشف کړل ؟ دا هغه څه دي چې تر نن پورې اشاره نه ده ورته شوې. قیمتي ډبرې یا غمي خوبه د ځلا له مخې په نښه شوي وي، خودا چې د سرو زرو ارزښت څنگه تشخیص اوپه نښه شو، دا ترنن پورې نه ده څرگنده شوې.

## دغالی اوبدونکو ...

او هېوادوالو اقتصاد وده او پرمختگ وکړي او ورځ تر بلې لا هم غښتلی او پیاوړی شي.
همداشان اړینه ده د افغانستان اسلامي امارت د سوداگرۍ او صنایعو وزارت د چارواکو ترڅنگ په هېواد کې گڼ شمیر خیریه موسسې او بنسټونه د هېواد د غالۍ اوبدونکو د ستونزو د حل لپاره لازمې مرستې وکړي، ترڅو په دې برخه کې دوی ته په ښه توگه آسانتیاوې برابرې شي یعنې نوي او مدرن د غالۍ اوبدلو تخنیکي وسایل د دوی په واک کې ورکړي او دوی په دې وتوانیږي چې دغه ښکلی صنعت لا هم په ښکلو ښکلو ډیزاینونو او نویو بڼو خپلو کورنیو او بهرنیو مینه والو ته وړاندې کړي.

## همه مردم باید در پاکیزه ...

نشراتی و مخابرات نقش موثری ایفا خواهند کرد.بهره گیری از علوم،فنون و تکنالوژی معاصر همچنان استفاده از اشخاص با تجربه و مسلکی،ایجاد طرح‌های اجرایی در بعد اقتصادی،مشارکت مردمی،بخش و نشر آموزش های عمومی از طریق رسانه های همگانی پروژه را به موفقیت های بزرگ نزدیک می نماید و اما در کشور ما بر اساس تفکیک وظایف و مسؤلیت ها،شاروالی ها و نواحی آن مسؤل پاکیزه نگهداشتن شهرها و ارائه خدمات شهری شناخته شده اند و این وظیفه براساس قوانین شهری که مردم و خانواده ها موظف اند سالیانه پول ناچیز را بعنوان صفایی به شاروالی ها می پردازند محکمتر گردیده است و پذیرفته شده است و انتظارات شهروندان از شاروالی ها را بیشتر نموده است.در حکومت پیشین با توجه به افزایش نفوس شهرها بخصوص شهرکابل توسعه ساحات تجارتی،مسکونی،تفریحی و همچنان عدم آشنایی با فرهنگ شهری مناسب،عدم امکانات مادی و معنوی شاروالی ها،بی توجهی،بی برنامه گی و کمبود دانش و ابتکارات مسئولین شاروالی کابل و مراکز زون های ولایات،نگهداری و پاکیزه نگهداشتن ساحات شهری و مبارزه با منابع آلوده کننده محیط زیست،بطور کلی فراموش شده بود و با بهانه های گوناگون این مسؤلیت مهم و خطیر که به حیات زندگی سلامتی،جسمی و روحی تمام افراد جامعه شهری سروکار دارد،رها گذاشته شده بود.از سوی دیگر یک عده از شهروندان کابل هم با قوانین شهرنشینی،اخلاق اجتماعی و فرهنگی آگاهی کامل نداشته و یا این قوانین رعایت نمی شود و یا بازگشت مهاجرین و ده ها ناهنجاری های دیگر سبب شده است و مردم را در بعدصحی،بهداشت سلامتی و مصاب شدن به امراض مختلف گرفتار خواهد کرد.
مسئولین شاروالی کابل تلاش می کند تا کار ساخت و ساز سرک های نو و تخریب شده ، کوچه های فرعی را بازسازی نمایند و همچنان از اعمار ساختمان های بي پلان و خود سر جلوگیری نموده و تغییرات خوبی در سیمای شهر به وجود آورند.
واقعاً که با توسعه، ساخت و ساز سرک های معیاری،کانکریت ریزی کوچه ها و سرک های فرعی و گسترش ساحات سبز، تامین نظم شهری،انتقال زباله دانی ها ، پاککاری کانال ها و سایر کارهای موثر می توان یک شهر پاک داشت.بدون تردید کارکردها و فعالیت های شاروالی کابل که توأم با دستآوردها و موفقیت ها بوده تاثیرات خوبی بجا گذشته و شهروندان کابل از آن استقبال می کنند.
نظافت ،پاکیزه گی و ساختن یک شهر مدرن در واقع تنها کار شاروالی و یا چند ارگان دولتی هم نیست، بلکه در این راستا شهروندان یک کشور نیز مسئولیت دارند،زیرا با یک نهاد نمی‌شود که شهر بیش از شش میلیون نفری را تنظیف نمود و یا پاکیزه نگهداشت.شهر به مثابه خانه مشترک شهروندان،از همه آنان می طلبد تا با رعایت اصول و سایر مولفه های شهری دست بدست هم داده و در زیبایی ،سرسبزی و آبادی این شهر را به اوج کمال و ترقی رسانیده و مسئولیت های شهروندی خود را انجام دهیم.
در نهایت شاروالی ها بالاخص شاروالی کابل باید وظایف قانونی،اجتماعی و مسؤلیت های اساسی خود را در قبال حفظ محیط زیست و توسعه فضای سبز ایجاد پارکینگ های وسایط نقلیه و آموزش های لازم جهت تنویر افکار مردم و با تصویب ضوابط و مقررات ضروری برای حل مشکلات بودجه و خدمات رسانی نه تنها در قسمت پاکیزه گی شهر بلکه یافتن راه حل اجتماعی و فرهنگ جامعه همت بگمارد و از مشارکت و حضور دایمی مردم و مورد احترام جامعه،علماء،دانشمندان و متفکرین استفاده نمایند و صاحبان شهرها که مردم هستند برای حفظ و نگهداری آن باید با خود شهروندان مشاوره و هماهنگی داشته باشند و همه با هم در پاکیزه نگهداشتن و صفایی خانه خود،شهرخود و کشور خود کوشا باشیم.

## هرات د آریانا دویم ...

د لوړو منارو اوڅوخانقا وومجموعه ده هم د هرات په لرغونتوب او توریستي جاذبوکې لوړ رول لري. د دغې مصلی کارپه ۸۲۹ قمري کال د شاهرخ میرزا په وخت کې پیل اوتر ۹۱۱قمري کاله د سلطان حسین بایقرا تر زماني پورې یې دوام درلود .
د اختیارالدین لویه اوتاریخي کلا چې د هرات ښارله لرغونوشاهکاریو یوه بارزه نمونه ده او دهرات د ارگ په نوم هم شهرت لري، لرغونی تاریخ لري. دغه کلا چې د جوړېدو تاریخ یې ۲۷۰۰ کاله دمخه ښودل شوی د خپل پایښت اوموجودیت په زمانه کې څوځلې مرمت شوې هم ده اوپه وروستیوکلونوکې د هرات ښار د توریستانود پام وړ گرځېدلي اوهمدارنگه د هرات موزیم چې دیونان باختري ، کوشاني ، یفتلي، اشوکا، صفاریانو، سامانیانو، غزنویانو، سلجوقیانو،غوریانو، خوارزمشاهیانو، مغولانو، تیموریانواوشیبانیانو د زمانو ۲۵۰۰لرغوني توکي پکې موجود دي ددې لویې کلا په یوه سالون کې خوندي پاتې شوي دي .
د هرات د لوی اوتاریخي جامع جومات په اړه ویل کېږي چې له اسلام دمخه دلته له لرگیوجوړشوی یومعبد موجود و چې وروسته بیا د ۲۲ـ ۲۹ قمري کلونوترمنځ د عربي فاتحینوله خوا په دې محل کې د یوه لوی جومات د بنسټ ډبره کېښودل شوه ، دغه جومات دخپل موجودیت په تاریخ کې څوڅلې متضرراوبیا رغول شوی دی. بالاخره د ۵۹۷او ۹۰۳ کلونوترمنځ په اوسنۍ بڼه دغوریانواوتیموریانو له خوا دپخوخښتوپه ذریعه په ښکلی عمارت دهغه په اوسنۍ بڼه جوړشو.
همدارنگه د هرات ښارله نوروتاریخي جاذبوڅخه دسلطان حسین بایقرا د زماني د مشهورشاعر، عالم اوادیب حضرت مولانا نورالدین جامي صیب زیارت دی. د یادونې وړ ده چې د امام فخررازي اومولانا حسین واعظ کاشفي زیارتونه هم د مولانا نورالدین ترڅنگ موقعیت لري .
د تخت صفرپارک چې د هرات ښارپه شمالي غونډیوکې موقعیت لري د دغه ښارله مهموتفریحي ځایونو څخه شمېرل کېږي چې څوسوه کلنه تاریخي مخینه لري، باغ ملت هم د هرات ښارپه شمال کې موقعیت لري چې اوس د هرات ښار په لوی تفریحي پارک اوښتی دی .
پل مالان د هرات ښارله ډېروپخوانیوتفریحي ځایونوڅخه دی ، دغه پل د هریرود سیند له پاسه د مالان په کوچني کلي کې دهرات قندهارد پخواني سړک په مسیرکې جوړشوی و ، دغه پل له ډېروپخوا زمانو څخه د هند ، قندهاراوسیستان په لوري یوه ډاډمنه گذرگاه وه چې یادوسیموته به سوداگریزکاروانونه د دغه پله لپاسه پوریوتل ، جالبه داده چې دغه پل په ۵۰۵ هجري قمري کال د سلطان سنجرلودي له خوا په هغې بڼه لکه کوم چې اوس دی په لړ توپیرجوړشوی و.
د هرا ت ښکلی او فرهنگي ښار د ۶۳۰۹۷ کیلومتره مربع مساحت په درلودلوسره د افغانستان په لویدیځ کې واقع دی او دغه ولایت د لویدیځ له خوا له ایران اود شمال له پلوه له ترکمنستان سره همسرحده دی، د سوداگرۍ له پلوه خاص اهمیت لري ۱۵ ولسوالۍ او ۲۷۸۱ کلي لري .

## ټکنالوژي ...

چک کړئ، یا حتی د ویډیو کالونو لپاره یې وکاروئ. Echo Studio بیا د لوړ کیفیت غږ لپاره ډیزاین شوی او د میوزیک د مینه والو لپاره غوره انتخاب دی.
د دې وسیلې گټې یوازې د کور دننه محدودې نه دي. Echo کولی شي ستاسو د ورځني ژوند د هرې برخې لپاره گټور وي. د مثال په توگه، تاسو کولی شئ د دې وسیلې له لارې د خوراکي موادو لېست جوړ کړئ، د انلاین شاپنگ لپاره امر ورکړئ، د موټر چلوونکو لپاره د لارې په اړه لارښوونې ترلاسه کړئ، یا حتی د یوې ژبې زده کړه وکړئ.
Amazon Echo د دریمې ډلې اپلیکیشنونو سره هم یوځای کار کوي، چې د Skills په نوم یادېږي دا ځانگړتیاوې تاسو ته دا فرصت درکوي چې د Alexa مهارتونه زیات کړئ او د خپلو اړتیاوو سره سم یې تنظیم کړئ. د مثال په توگه، تاسو کولی شئ د سپورټ لوبې پایلې معلومې کړئ، د خوړو ترکیبونه زده کړئ، یا د اقتصاد په اړه تازه معلومات ترلاسه کړئ.
د امنیت په برخه کې، Amazon Echo د دې توان لري چې ستاسو کور ته اضافي خوندیتوب وړاندې کړي. تاسو کولی شئ دا وسیله له امنیتي کامرو او دروازو سره ونښلوئ، ترڅو تاسو هر وخت خپل کور ته لاسرسی ولرئ.
په پای کې، Amazon Echo نه یوازې یوه هوښیار وسیله ده، بلکې د راتلونکې ټکنالوژۍ لپاره یوه نمونه هم ده. دا زموږ ژوند اسانه کوي، وخت سپموي او زموږ ورځنۍ چارې گړندۍ کوي. له دې پرمختگ سره، Amazon Echo د ټکنالوژۍ په نړۍ کې یوه له مهمو او اغیزناکو اختراعاتو څخه گڼل کېږي.

## مولوي عبدالکبیر:
# له افغانستان سره بشري مرستو ته دې سیاسي رنګ نه ورکول کېږي

د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزیر مولوي عبدالکبیر کابل کې د جاپان سفیر تاکایوشي کوروما یا سره کتلي دي. د کډوالو وزارت خبر ورکړی، دې کتنه کې د کډوالو وزیر ویلي، هېواد ته بېرته راستنېدونکي کډوال او بې ځایه شوي بشري مرستو ته اړتیا لري او مرستندویې اداري باید بېړنۍ مرستې وکړي. مولوي عبدالکبیر ټینګار کړي، چې هېوادونه باید بشري مرستو ته سیاسي رنګ ورنه کړي او له کوم توپیر پرته دې د اړمنو لاسنیوي وکړي. نوموړي همداراز ویلي، خپلو اصلي مېنو ته د راستنېدونکو کډوالو او بې ځایه شویو کورنیو ستنېدو او د هغوی لپاره د لازم چاپېریال برابرېدو ته باید کار وشي. د جاپان سفیر هم ویلي: هېواد یې غواړي افغانستان ثبات ته ورسېږي. د یادونې وړ ده، چې جاپان له راستنېدونکو افغان کډوالو سره ۱.۵ میلیونه ډالره مرسته اعلان کړې، چې د کډوالو پر موقتي استوګنځي، روغتیا، زده کړو او لومړنیو اړتیاوو ولګول شي.

# فراه کې د اسان خدمت څانګې ته ودانۍ جوړېږي

د فراه د احصایې او معلوماتو ریاست مسئولین وایي، چې په یاد ریاست کې د ۵.۶ میلیونو افغانیو په لګښت د اسان خدمت څانګې د ودانۍ د رغولو چارې پیل شوې دي. د یادې څانګې د پرانیستې پرمهال د یاد ریاست رئیس قاري عبدالکریم یوسف باختراطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې په یاد ولایت کې د لومړي ځل لپاره د اسان خدمت څانګې ته د ۵.۶ میلیونو افغانیو په لګښت ودانۍ جوړېږي. د نوموړي په وینا په دغې ودانۍ کې د ۲ تالارونو او نورو اړینو ملحقاتو جوړول شامل دي چې چارې به یې د یوې میاشتې په موده کې بشپړې او ګټې اخیستنې ته به وسپارل شي.
د یادونې وړ ده، چې د یادې ودانۍ په جوړېدو سره به د دغه ولایت اوسېدونکو ته د برښنایي پېژندپاڼو، پاسپورټونو او زېږون کارتونو د وېش په برخه کې اسانتیاوې رامنځته شي.

# سویډن کې د یو برید له امله ۱۱ تنه وژل شوي

د سویډن پولیسو خبر ورکړی، چې یوولس تنه ورمه ورځ د لویانو په یوه ښوونځي کې په ډزو کې وژل شوي. له راپورونو سره سم دا لومړنۍ شمېرې دي او تر اوسه د وژل شویو او ټپیانو وروستۍ شمېرې څرګندې نه دي. د ځایي پولیسو مشر رابرټو اډ فورسټ څرګنده کړې، چې د جرم په ځای کې رامنځته شوي وراني دومره پراخه وه، چې پلټونکي و نه توانېدل په دې اړه نور معلومات راټول کړي. پېښه د پلازمېنې سټاکهولم لویدیځ لور ته په ۲۰۰ کیلومترۍ کې د اوبرو ښار په کیمپس ریسبرګسکا ښوونځي کې رامنځته شوې، چېرې چې له ۲۰ کلونو پورته زده کړیالانو، کډوالو او د رواني معلولیت لرونکو لپاره درسي ټولګي جوړ دي. د یادونې وړ ده چې سویډن کې په ښوونځیو کې وسله وال بریدونه ډېر نه دي، خو په وروستیو کلونو کې په چړو، تبرونو او ډزو د مرګ ژوبلې پېښې په کې رامنځته شوې دي. چارواکي وایي چې دا پېښې کرار کرار مخ په ډېرېدو دي او هڅې کېږي چې په ټولو شونو لارو یې مخنیوي وشي.

**هند له افغانستان...**
د زیاتوالي لامل شي.دا په داسې حال کې ده، چې څه موده مخکې د هند د بهرنیو چارو مرستیال وزیر د اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزیر مولوي امیرخان متقي سره په عربي متحدو اماراتو کې لیدلي و. دواړو لورو د دوه اړخیزو اړیکو، د سیمې د امنیتي وضعیت او بشردوستانه مرستو په اړه خبرې کړې وې.

**د لوګر د عامې ...**
د عامې روغتیا ریاست د مطبوعاتو مسؤول ډاکټر فهیم الله لودین باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلی، چې یاد کانټینرونه د غوره روغتیایي خدماتو د وړاندې کولو لپاره د دې ولایت د مرکز پل علم په ګډون برکي برک، څرخ او خروار ولسوالیو ته ورکول کېږي.ځایي اوسېدونکي د عامې روغتیا ریاست د دغه اقدام هرکلي کوي، خو غوښتنه کوي چې په سیمه کې یې تلپاتې معیاري روغتیایي مرکزونه جوړ شي.

**پاکستان له بند ...**
قانوني اسناد هم لرل، له نیول کېدو وروسته بند هم تېر کړي دي. د سرچینې د معلوماتو له مخې دا کسان د ننګرهار، لغمان، کونړ، کابل، پروان، بلخ، غزني، خوست، جوزجان، سمنګانو، کندز، بغلان، دایکندي، میدان وردګو، هرات، پکتیکا، لوګر او بغلان ولایتونو اوسېدونکي دي.

**جاپان په بېلابېلو ...**
او بشري مرستو د دوام ډاډ ورکړي دي.د اقتصاد وزارت سرپرست هم په خپلو خبرو کې، د راستنېدونکو او د طبیعي پېښو له امله د زیانمنو شویو لپاره د جاپان د بشري مرستو قدرداني کړې او په بېلابېلو برخو کې د متوازنې پراختیا د اصل په پام کې نیولو سره یې، د یاد هېواد د پراختیایي مرستو ډېر تمرکز غوښتنه کړې ده، چې له دې لارې به کاري فرصتونه رامنځته او د خلکو د ژوندانه وضعیت ښه شي.

**مولوي قدرت الله جمال...**
ته د ښه راغلاست ترڅنګ د مجاهد ملي موزیم د فرهنګي، جهادي او نظامي اثارو لنډه پېژندنه وکړه او ویې ویل: د مجاهد ملي موزیم د جوړولو موخه راتلونکي نسل ته د هېواد د فرهنګي، جهادي او نظامي ارزښتونو ساتل وو. بله خوا د کارکوونکو چارو رئیس مولوي نقیب الله نعمان، مجاهد ملي موزیم هم یوه لویه لاسته راوړنه وبلله او زیاته یې کړه، چې د اطلاعاتو او فرهنګ د وزیر د حکم پر بنسټ یې مولوي حبیب الله مجاهد ته ستاینلیک په پام کې نیولی، چې ډېر ژر به ورته وسپارل شي.د یادونې وړ ده، چې په دې وروستیو کې له یاد موزیم څخه د اسلامي امارت د لوړ پوړو چارواکو ترڅنګ د کورنیو او بهرنیو سیلانیانو لیدنه ډېره شوې.

**لغمان کې د...**
او ګټې‌اخیستنې ته سپارل شوی دی.ده وویل: ((د مریضانو انتقال مرکز ته سخت و، سړک هم خراب دی او ډېر کله مریض په لاره کې تلف کېږي. دا یو ښه کار وشو ،چې ورسره به د مریضانو تداوي او مشکلات تر یوې اندازې پورې حل شي .))د یاد کلینیک آمر ډاکټر عصمت‌الله وایي، له دې وړاندې یې د ولسوالۍ د ودانۍ، ترڅنګ په دوو خونو کې خلکو ته روغتیایي خدمات وړاندې کول ،چې د نوي تعمیر په جوړېدو سره به خلکو ته معیاري خدمات وړاندې کړای شي.له دې وړاندې په بادپښ ولسوالي کې بشپړ روغتیایي مرکز شتون نه‌درلود، خو د یاد کلینیک په جوړېدو سره به دې ولسوالۍ کې روغتیایي ستونزې تر یوه بریده هوارې شي.

**ننګرهار کې...**
یادو پروژو په پلي کېدو سره به د یادو ولسوالیو ۹ زره کورنۍ د څښاک پاکو اوبو له ستر نعمت څخه برخمنې شي.

**افغانستان به په...**
والي مولوي امین الله عبید ویلي؛ له ولسونو سره دا ډول ناستې جوړول ډېر اړین دي ، ترڅو د ولسونو اصلي غږ تر لوړو مقاماتو ورسېږي او ستونزو ته یې د حل لارې ولټول شي.د لیدنې په اوږدو کې د پلازمېنې کابل د ټولو مرکزي ناحیو ترڅنګ د قره باغ، شکردرې، ګل درې، استالف، کلکان، میربچه کوټ او فرزې ولسوالیو استازو غوښتنه کړې، چې د ولسي ستونزو په برخه کې پاملرنه وکړي او ځوانانو ته د کاري فرصتونو په برابرولو کې همکاري وکړي.

**د کمال خان بند...**
د اسلامي امارت رهبرۍ د وچکالۍ وضعیت او د خلکو اړتیاوو ته په کتو د هېواد د اوبو مدیریت ته ژمن دی او په دې هکله ګاونډیو هېوادونو ته ډاډ ورکوي چې د دغه بند له جوړولو څخه به هېڅ هېواد زیانمن نه شي. له بلې خوا د اوبو معین په دغو مراسمو کې یادونه وکړه چې د کمال خان بند د سېلابونو د کنټرولولو او د اوبو د مدیریت په موخه جوړ شوی او د اوبو او انرژۍ وزارت ډاډ ورکوي چې د دغه بند په جوړېدلو سره به هېڅ هېواد زیانمن نه شي.
په همدې حال کې د کرنې وزارت سرپرست، په دغو مراسمو کې یادونه وکړه چې د اسلامي امارت مشران د افغانستان خلکو ته د خدمتونو د وړاندې کولو لپاره په بېلابېلو برخو کې شپه او ورځ په صداقت سره هڅې کوي. همدارنګه د نیمروز والي د اسلامي امارت د رهبرۍ له خوا دغه ولایت ته د پاملرنې په ستایلو سره، یادونه وکړه چې په دې وروستیو کې له نېکه مرغه د نیمروز خلک په دغه ولایت کې د څو لویو پروژو د پرانیستې شاهدان دي.
د یادونې وړ ده چې کمال خان بند د هېواد له لویو بندونو څخه دی، چې د نیمروز ولایت په چهار برجک ولسوالي کې د موسمي سېلابونو د کنټرول، د ۵۲ میلیونه متره مکعبو اوبو د ذخیره کولو او د ۶ مېګاواټه برق د تولید د وړتیا په موخه پلي شوی دی.
دغه بند د اوبو وضعیت ته په کتو سره کولی شي ۱۷۴۰۰۰ هکتاره کرنیزه ځمکه تر خړوبولو لاندې ونیسي.

**راشد خان د نړۍ ...**
راشد خان وروسته د ویسټ انډیز لوبغاړي ډي جې براوو دی، چې ۶۳۱ ویکټې لري، خو هغه له لوبو څخه استعفا کړې ده. راشد خان په ۴۶۱ لوبو کې یاد شمېر ویکټې اخیستې دي او ډي جي براو بیا په څه باندې ۵۸۰ لوبو کې ۶۳۱ کسان سوځولي دي.

**د صنعت او سوداګرۍ...**
به هغو ځمکو ته منظم پلانونه جوړ کړي چې د صنعت او سوداګرۍ وزارت ته انتقال شوي دي.نوموړي وویل، هغه پلانونه چې پخوا جوړ شوي او ویزه شوي نه دي، هغه به ویزه کړي او د نورو لپاره به یې تخنیکي ټیمونه لاس په کار شي.په ناسته کې تصمیم ونیول شو چې، د چارو د لا چټکتیا په موخه به د صنعت او سوداګرۍ وزارت لومړیتوبونه ټاکي او له مخې به یې د کور او ښار جوړولو وزارت کار کوي او یا به د کافي اندازې وسایلو او پرسونل پر برابرولو غور کوي.د کور او ښار جوړولو وزارت د صنعتي پارکونو لپاره د ځمکو حقوقي او تخنیکي ستونزې حل کوي.

**پنجشېر کې ...**
چې په دې ولایت کې پر ۲۱۵ هکتاره ځمکه د غوزانو بڼونه شتون لري. هغه د غوزانو د حاصلاتو د ډېروالي لاملونه مناسبه هوا، پر وخت اورښتونه او د بڼوالو ملاتړ ښودلي دي.د یادونې وړده، چې په دغه ولایت کې د غوزانو کاغذي، خوشه یي، کورک او عاقلي ونې موجودې دي.

**الشرع د اسرائیلو...**
خبرې کړې دي.الشرع ټینګار کړی، چې نړیوال باید پر اسرائیلو فشار راوړي ،ترڅو د ۱۹۷۴ کال د هوکړې پر اساس د سورېې له نیول شوې سیمې ووځي.اردوغان د سورېې له نوي حکومت سره د ګډې همکارۍ ژمنه کړې او ویلي یې دي، چې ترکیه به د داعش او د کردانو د کارګر ګوند پر ضد د سورېې ملاتړ ته دوام ورکړي.ترکیې چې د سورېې د کورنۍ جګړې پر مهال د اسد د مخالفینو ملاتړ کاوه، اوس د نوي حکومت له نږدې متحدانو ګڼل کېږي.

**کونړ کې...**
د کمپاین د پرانیستې په مراسمو کې د کونړ مرستیال والي مولوي عبدالله حقاني وویل، ونې او بوټي د هېواد د سرسبزۍ او د انساني ژوند په پرمختګ کې مهم رول لري او د دې مهمې چارې لپاره زیاته پاملرنه کېږي.ځایي مسؤولینو له سیمه ییزو خلکو غوښتنه وکړه چې د نیالګیو کېنولو په دې کمپاین کې برخه واخلي او خپل ملي مسؤولیت ادا کړي.

**کندز کې زرګونه...**
مهال تازه راستنو شویو کډوالو ته د سرپناوو د جوړېدو خبر ورکوي، چې همدا روان کال له بېلابېلو بهرنیو هېوادونو څخه کندز ولایت ته اته زره او ۵۰۰ کډوالې کورنۍ راستنې شوې دي.

**د کار او ټولنیزو...**
د یاد وزارت له لوري نږدې ۳۵۰۰۰ تنه ځوانان له مختلفو رشتو څخه فارغ شوي دي، نو موږ دوی ته کاري فرصتونه برابروو، تر څو دوی له دې لارې د ټولنې خدمتګار او د ځان د اقتصاد لپاره ګټور واوسي. نوموړي همداشان وویل: د کار او ټولنیزو چارو وزارت په هڅه نږدې پنځه زره روږدي کسان په حرفوي زده کړو سمبال شوي، یاد کسان چې په ټولنې بار وو، اوس د ټولنې خدمتګار ګرځېدلي دي.
همداشان دغه ځوانان اوس له شپږ میاشتې روزنې وروسته فارغ شوي چې د ټولنې د پرمختګ او د حلالې ډوډۍ د پیدا کولو سبب به وګرځي، موږ هڅه کوو چې ځوانانو ته کاري فرصتونه برابر کړو او کوم اسناد چې ور کول کېږي، له هېواد پرته یې په بهرنیو هېوادونو کې د کار پیدا کولو په موخه کارولي شي. موږ هره هڅه کوو چې ځوانانو ته مو د کار زمینه برابره کړو تر څو له نشه یي موادو څخه وژغورل شي، ځکه چې بېکاري د ډېرو ناوړه عملونو سبب ګرځي. دا مو مسؤولیت دی او ستاسو په مرسته به ځوانان په حرفې سمبال کړو او د کار د بازار ځواک به واوسي. د یونسکو جاپان موسسې رئیس یما فیروزي وویل: د یونسکو جاپان موسسه چې له ۲۰۰۲ کال را په دې خوا په افغانستان کې فعالیت کوي او په افغانستان کې ځوانانو ته حرفوي او زده کړه ییز پروګرامونه برابروي تر څو دوی پرې سمبال کړي. د راتلونکي لپاره هم ورته پلان شته چې د بېکارۍ کچې ته په کتلو سره ټولې بشري مرسته کوونکې موسسې دې ځوانان په حرفوي زده کړو وروزي تر څو د کار بازار اړتیا پرې ډکه شي. یاده موسسه هڅه کوي چې په هر ډول شرایطو کې د حرفو او نورو روزنیزو پروګرامونو برخو کې زمینه برابره کړي.د نوموړي په وینا: یادو کسانو ته به د خپلو رشتو په اساس وسایل هم ور کول کېږي چې تر څو یې وکاروي، خپل کارونه سمبال او د غټ کار لپاره ګټه ترې واخلي. د دې روزنیز پروګرام په جریان کې زیاتره ځوانانو د خپلو رشتو په اساس دوکانونه جوړ کړي دي چې اوس د ګټې څښتن دي.

**زیارمل هوتک**

**د غزې اوسېدونکو ...**
ښکلې ځمکه ورکړل شي.د حماس غورځنګ د ټرمپ دا څرګندونې غندلې او ویلي یې دي، چې دا ډول نظرونه د صهیونستي اشغال د جرمونو پټولو لپاره هڅه ده.حماس ټینګار کړی، چې د غزې د جګړې اصلي هدف د فلسطینیانو په زوره کډوالول دي.
په همدې حال کې د اسرائیلي رژیم لومړي وزیر بنیامین نتانیاهو له ټرمپ سره په سپینه ماڼۍ کې لیدلي او ویلي یې دي، چې د جګړې موخه یې د حماس پوځي ظرفیت ختمول او د ټولو اسرائیلي یرغمل شویو کسانو ازادول دي.په ورته وخت کې د سعودي عربستان د بهرنیو چارو وزارت ویلي، چې د فلسطین د دولت د جوړېدو لپاره د سعودي دریځ ثابت دی او دوی به د فلسطینیانو د حقونو دفاع ته دوام ورکړي.همدارنګه د استرالیا صدراعظم انتوني البنیزي هم ټینګار کړی، چې د فلسطین او اسرائیلو لپاره د دوو دولتونو حل یوازینۍ مناسبه لاره ده.دا په داسې حال کې ده، چې د ټرمپ څرګندونو د فلسطین د وضعیت په اړه یو ځل بیا نړیوال بحثونه تاوده کړي او ډېرو هېوادونو یې پر وړاندې جدي غبرګونونه ښودلي.

# Hewad Daily

پنجشنبه دشعبان المعظم۷مه ۱۴۴٦ق کال د ۱۴۰۳ ل کال د سلواغې ۱۸ مه د 2025 م کال د فبروري 6مه

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ کابل - افغانستان
داړیکو شمېره: ۰۲۰ - ۲۵۲٦۳۴۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې ویب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷٦٦۰۴۴۹٦٦-۰۷۳٦۰٦۰۷۳


## ملا نورالله نوري:
# افغانستان به په نړدې راتلونکي کې د نړۍ سیال هیواد وي

د کابل ولایت د والي امین الله عبید په مشرۍ د یاد ولایت د اوو ولسوالیو قومي مشرانو، دیني عالمانو او ځوانانو د سرحدونو، قومونو او قبایلو چارو له وزیر ملا نورالله نوري سره لیدنه کړې.په دې لیدنه کې دوی د اسلامي امارت کلک ملاتړ څرگند کړی او ویلي یې دي، دا سوچه شرعي نظام دی او ټول ولس پکې خپل ځان ویني.نوموړو زیاته کړې: هیچاته اجازه نه ورکوو، چې د دې نظام د تخریب لپاره دسیسې جوړې کړي.ورپسې ملا نور الله نوري ویلي: د اسلامي امارت په حاکمیت او قایمولو کې د دې ولس ځوانانو، علماوو او مشرانو قربانۍ ورکړې او نن چې شرعي نظام حاکم دی دا د دې خلکو د دیانت، غیرت، میړانې او جهاد برکت و .ښاغلي نوري همدارنگه په نظامي، اقتصادي او سیاسي برخو کې د افغانستان د اسلامي امارت لاسته راوړنو ته په اشارې سره داډ څرگند کړي، چې افغانستان به په نړدې راتلونکي کې د نړۍ سیال هیواد وي او موږ به د ډېرو پرمختگونو شاهدان یو. د ناستې په ترڅ کې د کابل...۷مخ

# راشد خان د نړۍ په کچه ۲۰ اوریزو لوبو کې زیاتې وېکټې اخیستي

د کرېکټ ملي لوبډلې لوبغاړي راشد خان اوس په نړۍ کې لومړي هغه توپ اچوونکي شو، چې په شل اوریزو لوبو کې تر ټولو زیاتې ۶۳۳ ویکټې لري. په دغو شل اوریزو سیالیو کې د راشد خان نړیوالې او نورې سوداگریزې لوبې شاملې دي. راشد خان ورمه شپه د جنوبي افریقا په شل اوریز تجارتي لیگ کې د یو لوبغاړي دینت ویلالاگې په سوځولو سره دا ریکارډ جوړ کړ. له ...۷مخ

# تازه موندنې: غزه کې تر ۶۰۰۰ اسرائیلي پوځیان وژل شوي

د اسرائیلو ۱۲ چېنل په یوه را پور کې د صهیونیستي رژیم د نوي لوي درستیز ایال زامیر له قوله لیکلي چې د غزې په جگړه کې ۵ زره او ۹۴۲ اسرائیلي پوځیان وژل شوي او له ۱۵ زرو زیات ټپیان شوي دي.
یاد چېنل زیاتوي چې د لبنان او د فلسطین په غربي تراړې کې د وژل شویو اسرائیلي پوځیانو شمېر هم له هغو ډېر لوړ دي، چې پوځ اعلان کړی.دا رسنۍ زیاتوي ،چې په غزې، لبنان او الضفة الغربیة(د فلسطین غربي تراړه) کې د ټولو وژل شویو اسرائیلي پوځیانو شمېر آن تر ۱۳ زرو عسکرو رسېږي.دا پوځیان د طوفان الأقصی عملیاتو په لړ کې او له هغه را وروسته په غزې، فلسطین غربي تراړې او لبنان کې وژل شوي دي.د یادونې وړ ده دا لومړی ځل دی، چې اسرائیلي اشغالگرو ته دومره ستر تلفات اوړي.

# د صنعت او سوداگرۍ وزارت اړوندې ځمکې لپاره پلانونه جوړېږي

د کور او ښار جوړولو وزارت سرپرست الحاج شیخ حمدالله نعماني، د صنعت او سوداگرۍ وزارت مرستیال مولوي احمدالله زاهد او مل پلاوي سره وکتل. په دې کتنه کې، د ټول هېواد په کچه د هغې یوسل او شپېته زره (۱٦۰۰۰۰) جریبه ځمکې په اړه خبرې وشوې چې، د صنعت او سوداگرۍ لپاره په هر ولایت کې ځانگړې شوې ده.د صنعت او سوداگرۍ وزارت مرستیال مولوي احمدالله زاهد وویل، له بېلا بېلو تخنیکي ستونزو سره مخ دي او اړتیا ده چې د یادو ځمکو لپاره منظم پلانونه، نقشې او نور تخنیکي موضوعات وڅېړل شي او منظم ترتیب شي.د کور او ښار جوړولو وزارت سرپرست الحاج شیخ حمدالله نعماني وویل، په ټولو ولایتونو کې...۷مخ

# پکتیکا کې د یوې پروژې چارې پیل شوې

د پکتیکا ولایت د ټولگټو چارو ریاست مسئولین وايي، چې په دغه ولایت کې د شاوخوا ۶ میلیونه افغانیو په لگښت د یوې پروژې چارې پیل شوې دي.
د یاد ولایت د ټولگټو چارو رییس مولوي محمد اکبر عادل باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د دغه ولایت له مرکز ښرنې څخه تر جاني خېلو ولسوالۍ پورې د شاوخوا ۶ میلیونو افغانیو په لگښت د ترافیکي نښو، خط اچونې او د سړک غاړو ته د کټارو د نصبولو چارې پیل شوې دي.
نوموړي زیاته کړې، چې د خط اچونې چارې یې د ۱۵ کیلومتره په اوږدوالي پیل شوي، چې د درېوو میاشتو په موده کې به بشپړې شي.

# پنجشېر کې څه باندې ۲۰۰ مټریک ټنه غوزان راټول کړای شوي

د پنجشېر د کرنې، اوبولگولو او مالدارۍ ریاست مسئولینو سږکال په دغه ولایت کې د ۲۰۰.۷ مټریک ټنه غوزانو د راټولولو خبر ورکړې دي.د یاد ولایت د کرنې، اوبولگولو او مالدارۍ رئیس قاري فضل الله دیوبندي باختراطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د ورکړل شویو شمېرو له مخې سږکال د یاد ولایت له بېلا بېلو سیمو څخه ټولټال ۲۰۰.۷ مټریک ټنه غوزان راټول کړای شوي دي.نوموړي زیاته کړې...۷مخ

# کندز کې زرگونه جریبه ځمکه راستنو شویو کډوالو ته د ښارگوټو جوړولو لپاره ځانگړې شوه

د کندز د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو ریاست مسئولین وايي: وروستیو کلونو کې راستنو شویو کډوالو ته د کورونو او سرپناوو جوړولو په موخه یې د دې ولایت په مرکز او ولسوالیو کې زرگونه جریبه ځمکه ځانگړې کړې.د کندز ولایت د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو رئیس مولوي محمد ولي محمدي وايي: نږدې راتلونکي کې به یادو ځانگړو شویو ښارگوټو کې راستنو شویو کډوالو ته د کورونو جوړولو بهیر پیل شي.له دې سره هم مهاله راستنې شوې کورنۍ وايي: اسلامي امارت یې تر ډېره بریده لاسنیوی کړی او زیاتوي ،چې دوی ته د دایمي سرپناوو په جوړولو سره به یې شته یو شمېر ستونزې هم حل شي.د کندز ولایت د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو ریاست داسې...۷مخ

# کونړ کې د نیالگیو کېنولو کمپاین پیل شو

د کونړ د کرنې، اوبولگولو او مالدارۍ ریاست له خوا د (زرغون کونړ) تر سرلیک لاندې د نیالگیو کېنولو کمپاین پیل شوي دي.د یاد ولایت د کرنې، اوبولگولو او مالدارۍ رئیس مولوي سلیمان ایمن ویلي، چې د دې ولایت په دولتي او خصوصي قوریو کې سلگونه زره بوټي روزل شوي، چې د دغه ولایت په کچه به سږ کال ۹۰۰ زره نیالگي کېنول شي.نوموړي وویل، چې د دې کمپاین په لړ کې به نږدې یو میلیون میوه لرونکي، غیر میوه لرونکي او زینتي بوټي کېنول کېږي...۷مخ

## اردوغان سره کتنه کې؛
# الشرع د اسرائیلو پر ضد د نړیوال فشار غوښتنه وکړه

د سوریې د انتقالي حکومت ولسمشر احمد الشرع په خپل دویم نړیوال سفر کې انقرې ته تللی او د ترکیې له ولسمشر رجب طیب اردوغان سره یې د امنیتي همکاریو، اقتصادي بیارغونې او د اسرائیلو له خوا د جنوبي سورېې د نیول شوې سیمې په اړه...۷مخ

# د کار او ټولنیزو چارو وزارت اړوند ۱۵۵ تنه ځوانان له ۴ څانگو فارغ شول

د کار او ټولنیزو چارو وزارت اړوند ۱۵۵ تنه ځوانان د جاپان د یونسکو موسسې په مالي او تخنیکي مرستې د برښنا وداني، یخچال، ایر کنډېشن، د برښنایي وسایلو د ترمیم او د خیاطۍ له حرفو څخه فارغ شول، فارغو شویو ته په اړوندو حرفو کې د کار وسایل هم ووېشل شول، تر څو ټولنه کې پرې د کار جوگه وگرځي. په دې اړه راټولې شوې غونډې ته د کار او ټولنیزو چارو وزارت د کار چارو مرستیال محمد زاهد احمدزي وویل: د خوښۍ ځاي دي چې نن ۱۵۵ تنه ځوانان له څلورو حرفو څخه فارغ شول، زموږ هېواد کې سر تاسري امنیت دي او اسلامي امارت په خپلو هڅو سره هر ډول امکانات هېوادوالو ته برابروي. له بده مرغه چې د بېکارۍ کچه زیاته ده او هڅه کوو چې ځوانانو ته کاري فرصتونه برابر کړو. د روان کال له پیل راهیسې په کابل او نورو ولایتونو کې...۷مخ

# د غزې اوسېدونکو د ټرمپ تکراري غوښتنې ته سخت غبرگون ښودلی

د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ په خپلو تازه څرگندونو کې ویلي، چې غزه د ژوند کولو وړ ځای نه دی او د دې سیمې اوسېدونکي یوازې ځکه هلته پاتې دي، چې بله هېڅ لاره نه لري.
ټرمپ زیاته کړې، چې غزه تل د مرگ او ویجاړۍ شاهده پاتې شوې او که د فلسطینیانو لپاره بله مناسبه سیمه پیدا شي، نو دا به د دوی لپاره له ټولو ښه حللاره وي.
نوموړي وړاندیز کړی، چې فلسطینیان باید مصر، اردن، یا بلې مناسبې سیمې ته انتقال شي او هغوی ته نوې، ښه، او...۷مخ